

پوهاند دکتور مجروح

# ځانځانی ښامار



د حکیم سنائي غزنوي

د زیږیدو ۹۰۰ تلین په مناسبت



# ځانځانی ښامار

پوهاند دوکتور مجروح




خپروونکی

د ادبیاتو او بشری علومو پوهنځی

۱۳۵۶

دبينوا په قلم

# دا اثر

په ډېره تلوسه مې د «ځانځاني ښامار» له سره تر پايه وکوت .
د ډاکټر سيد بهاءالدين «مجروح» پرمغزو دې برکت، او پر قلم دې رحمت سي .

په ډاډه زړه ويلای سم چې په پښتو ژبه کې دالومړی عالي فلسفي اثردی چې په‌نوی، خوندوراسلوب ديوه پښتون فلسفي استـــاد له خوا ليکلی سوی دی او تراوسه يې ماپه پښتو ژبه کې ساری نه دی ليدلی. اوزما يقين دی چې هر منصف ليکوال چې دا اثر په دقت ولولي، نو هم به زما داخبره تائيد کړي‌اوهم به د «مجروح» فلسفـی فـکر اوله خونده ډکه ليکنه وستايي .

خوښنگه چې‌زه فيلسوف نه‌يم، نوځان ته داحق نه ورکوم چې ددې ښکلي اوخوندور فلسفي اثر معنوي ښکلا اوخوند د «سيـر آفاق» او«سير انفس» په مرموزو لارو، اوياد«شعور»او«تحت الشعـور» په ژورو سمڅو کې ولټوم اوبياد «ايگوخان» (*) د ذات داتلټوب داثبات يانفي

(*) Ego- يعني ځان «زه» خودپرسته شعور ـ دښامار په قصه کې «ايگو» دداستان دظالم او مستبدقهرمان اوفرماندار نوم دی.

لمړی

دپاره هغه وخیرم، زه یوغیر فلسفي اوعادي لوستونکی یم، نو هغه څه چې ما دیوه عادي لوستونکي په توګه ددې اثر له لوستلوڅخه الهام اخیستی دی، هغه دیوه «بغاوت» بڼه لري. خو:

## مقدس بغاوت!

مقدس بغاوت ځکه ورته وایم چې «مجروح» د «ځانځاني» دهغه فاسد، غلط، کاذب اوپه عین حال کې غضبناك، بیباك، ډاروونکي اوپرځان مین اقتدار پرضد بغاوت کړی دی چې ځینې ناپوه او خود خـواه انسانان یې دوریښمو دچنجیو په شان په خپل واك له خپلو ځانو څخه زیږوي اوبیا داسې ځانونه پکښې نغاړي چې بې له خپلو ځانوڅخه بل څه نه ویني اوله هره یوه څخه د «زه» بت جوړسي او ناري وهـي:

«— زه یم زه! دستائینې اونمانځنې وړ! راته په ګونډو ځئ! اوپه پټو سترګو زما نمانځنه وکړئ! ـ که نه وي نو نه یاست!»

وهمپرسته او ډارن انسانان چې ددوی داهیبتناك اوله تهدیده ډك زغونه واروي، نوورته پرګونډوسي اوسجدې ورته کوي، په تیره بیاچې داد «زه» بت، راهبان علم وموومي چې ساده ګان انسانان ورته رالمسوي. داکاذب اوپڅپله دانسان مخلوق اقتدار چې دوهمپرستو اوبیرندوکـو انسانانو داد پټو سترګونمانځنې اوسجدې وویني، نولازیات مغرور اوپر ځان مین سي، ځانته «سترایګو» Super – Ego ووائي د «لاغیری» ناره اوچته کړي.

بیانو دآزا دی دجذبـې ورونه وتړي، دخوښي اومینې غرڅنې غروته شړي، انقلابـي قدرتونه زندانونه ولیږي اودښاریانو پرژوند دهیبت، غم اوبیرې توره پرده وغوړوي. نو په داسې وخت کې همداسې یو «مقدس بـغاوت» په کاردی چې لومړي دامغروره، غضبناکه اوپرځـان مین «ایګوخان» پرخپل ځای کښینوي، سریـې وکوټې اوله مغزوڅخه یـې د «یوازې زه» لعنتي فکر وباسي، اوبیا هغه پرسجده ورته پروت، پریوتی

دوهم

او واهمی اخیستی دارن مریی دحقیقی انسانیت لوری ته رهنمایی کړی اوزړه یې دبیځایه دارله توری بلاڅخه وژغوری .

په دی بغاوتی اثر کی دا مقدس بغاوت نه یوازی د «ایگوخان» په مقابل کی راپاروول کیږی، بلکه «مجروح» د «ځانځانی» دښام ـ ار په پاړوگانو او روزنکو پسی هم دبغاوت اوسر کوټلوامسارا اخیستی ده اودراهبانوله بی‌شرمواغماضواوشومواغراضوڅخه هم‌پرده‌پورته کوی.

نوای فلسفی استاده!

دامقدس بغاوت دی مبارك سه

اود«ځانځانی ښامار» په باب کی دیوه‌غیرفلسفی اوعادی‌لوستونکی داورکوټی انتباه درواخله. که ستا دفلسفی سره سمه وه نود «ځانځانی ښامار» خولی‌ته ئی‌وروغورځوه، اوکه ن، نوهیڅ!

**ستا بینوا**

# سریزه

دغه کتاب څو کاله وړاندې پوهاند دکتورمجروح د نفسي حوادثو د ودې اوتکامل په بیان کې په روان دري نثر کښلی ؤ ، چې بیا په ۱۳۵۲ ش کال د تاریخ ټولنې د خپرونه په لړ کې خپورشو . خو دا ځل یې همدغه اثر په موزون ابتکاري پښتو نثر کښلی دی ، چې آزاد شعرهم ورته ویلای شو .

که څه هم پښتو شعر څلویښت کاله دمخه لوی استاد پوهاند عبدالحي حبیبي په طلوع افغان کې پیل کړی ؤ ، مگر نشوونمایې ترهغې وروسته په افغانستان او پښتونستان کې زیاته وموندله چې ډیرواديبانو په دې نوي قالب کې۔ چې داروپایې ادب له تقلیده په پښتو ادب کې باب شوی و ـــ شعرونه و ویل .

په افغانستان کې دنوي شعر پلویان: حبیبي ، استادبینوا ، شپون ، لایق او رفیع دي ، د استاد حبیبي ، بینوا ، شپون اولایق د آزاد شعر نموني په متفرق شکل په ځینومجموعو

اود هیواد په مطبوعاتو کې خپرې شوې دي ، مګر د ښاغلي رفیع د «ای هیواده!» مجموعه ( طبع ۱۳۵٦ ) ټوله د آزاد شعر په کالب کې ویل شوې ده .

په پښتونستان کې محمدنواز طایر او شیرز مان غمجن د پښتونوي شعر له هوا خواهانو څخه دي ، د نواز طایر ځینې پارچې د پېښور د پښتو اکیډیمي په پښتو مجله کې ، او د ښاغلي غمجن د آزاد شعر نمونې هم د هغې سیمې په خپرونو کې موندل کېږي ، په پښتو آزاد شعر باندې د بنګال د انقلابي شاعر قاضي نذرالاسلام ( ۱۹۷٦ ع مړ ) د اشعارو ترجمه په دغه سلسله کې د نواز طایر له ارزښتمنو کارو څخه ګڼل کېدای شي ، دغه کتاب د بنګال سندرې په نامه په ۱۹٦۴ ع کال پښتو اکیډیمي خپور کړی دی .

د پوهاند دکتر مجروح دغه اثر د پښتو آزاد شعر په سلسله کې یوه مغتنمه مجموعه ده . چې د لوړو یادو شو ومجموعه څخه ځانګړنتیاوې اومـزایا هم لـري ، او هغه دا چې ده ، چې د وی آزادشعر پهمقیدوهجایـيوزنونو کې ویلي دي ، ټول بیتوته یـې شپاړس ، دولس، اتـه او څلور سیلابه لري .

دخوښۍ ځای دی ، چې دغه ابتکاري اثر دغـزنې دنومیالي حکیم حضرت سنايي دبین المللي سیمینار ددرناوي په ویاړ خپرېږي .

پنځم

دویلو وړده ، چې دهیواد زیاتو نومیالو لیکوالو په دغه اثر باندې سریزې کښلې وې، مګر د وخت دنشتوالي له امله موږ ونشول کولای چې هغه ټولې مقدمې له دغه اثر سره یوځای چاپ کړو .

دادبیاتو اوبشري علومو پوهنځی استاد مجروح ته ددغه اثر دچاپ مبارکی وایـي ، اودپوهنتون دخپرونو له لوی مدیر پوهنوال هاله ، اوطباعتی‌مدیرښاغلی عبدالجلیل اونورو کارکوونکو نه دزړه دکومی مننه کوي ، چې ددغه اثر دچاپ په برخه کې یې زیار ایستلی دی .

**پوهاند میر حسین شاه**

**دادبیاتو اوبشری علومو پوهنځی رئیس**

د لیکوونکی له خوا

# یو څو لمړی خبری

دا کوچنی مجموعه دلومړی ځل دپاره د «اژدهای خودی» تر عنوان لاندی په دری ژبه په کال ۱۳۵۲ کی خپره شوه ( * ) .
دوستانو او دنظر خاوندانو ډیرخوښه کړه . مگر ځینی دوستانو افسوس وکړو چی کاش دامضمون په پښتو ژبه کی هم بیان شوی وای . زماسره پخپله د « اژدها » له خپریدو څخه پخوا دا فکر اودانیت وچی یووخت بهخپل مطالب په پښتو هم را اړوم . ترڅو آخرلږڅه فرصت اوفراغت پیداشو او« ښامار » پښتو بڼه پیدا کړه . اوڅه زیاته برخه ئی د «وږمی» مجلی په څوشمارو کی چاپ شوه .

اوس لیکوونکی ویاړی چی دامجموعه دکتاب په بڼه دحکـیم سنائی غـزنـوی د تلـین په مناسبت ، د سیمینار دعلمی کمیټی په سفارش دادبیاتو اوبشری علومو دپوهنځی له خوا نشریږی. پهرشتیاهم چی ددی کوچنی اثر دخپریدو دپاره ، دیوداسی علمی او ادبی مجلس له

(*) « اژدهای خودی - دتاریخ تولنی خپرونه .
کال ۱۳۵۲ - نمبر ۱۸ / ۱۰۸

مناسبت څخه پر ته بله بهتره مناسبه موقع نشي پیدا کیدای. ځکه چې دا اثر دحکیم سنائي دستر انساني پیغام سره ټینګ او ژور پیوندونه لري. په دې مهم ټکي به دخبرو په آخر کې څه رڼا واچوو. اوس پکار دي چې پخپله په کتاب څه لنډې خبرې وشي.

**د «ښامار» سبک:**

شک نشته چې داوسني مجموعي عمده او اساسي فکرونه او مضمونونه هماغه دي چې په «اژدهای خودی» کې راغلي دي. مګر د «اژدهای خودی» او «ځانځاني ښامار» په مینځ کې ځینې مهم توپیرونه هم شته. دمحتویاتو له پلوه په «اژدها» کې ځنې مطالب شته چې په «ځانځاني» ښار» کې حذف شوي دي، یا په ډیر اختصار بیان شوي دي. او ځینې نوي مطالب په پښتو کې راغلي دي چې په دري نشته.

د شکلیاتو له پلوه، «اژدهای خودی» په دري کلاسیکې ساده نثر لیکل شوی دی. او په پښتو کې د «ښامار» دمطلبو دبیان دپاره، دپښتو ژبې داصیلي روحیې سره سم یو خاص قالب اونوي چوکاټ جوړ شوي دي. د «ځانځاني» ژبه نه نثر دی ځکه چې وزن لري، او نه نظم دی ځکه چې دقافیو اوردیفونو مراعات پکې نه دي شوي. اونوي شعرورته ویلای شو. مګر دا چوکاټ داوسني نوي شعرونو تقلید نه دی. بلکه ددې چوکاټ په جوړښت کې دپښتو دشفاهي ادب دځنې اشکالو څخه او دپښتو دلیکلي ادب دځنې زړونثرونو څخه الهام اخستل شوي دي. پدې شان «دښامار» سبک داسې یو سبک دی چې هم د اوسني نوي دنوي شعر بڼه لري او هم دپښتو ژبې په شفاهي او لیکلي ادب کې پخې ریښې لري. اوکه څوک دنکو خج اودعباراتو صحیح تلفظ ته دقت وکړي، نودامجموعه بهسرترپایه دیوساده روان او آزاد شعر پشان ولوستلای شي. ځکه هڅه شوې ده چې په عبارتونو کې هیڅ سکتګي نه وي، اوهره جمله یا په (۴) یا په (۸) یا په (۱۲) اویا په (۱۶)

سیلابونو دریږی. د « ښامار » د سندری اصلی اوبنیادی وزن ، څلور سیلابی موزونه جمله ده چی بیا څلور څلور سیلابه پری اچول کیږی چی کله تری اته سیلابی کله دوولس سیلابی او کله هم شپاړس سیلابی جمله تری جوړیږی .

داوزن چی لیکونکی ورته اوس « دښامار سبک » وای، دپښتوژبی یو پیاوړی ادیب اوشاعر دومره خوښ کړو ، چی په همدی ئی یوه قطعه اوږد شعرووایه . ښاغلی بینوا «دښامار» په وزن «دکلورنځور » ترعنوان لاندی یو شعر چاپ کړی دی چی داسی شروع کیږی :

« هاخوادی خوا، (۴ سیلابه)
غځیدلی هسک دنگ غرونه ، ( ۸ سیلابه )
ښکلوی دآسمان شونډی . (۸ سیلابه )
په سروئی پگی سپینی سپینی واوری، (۱۲سیلابه)
پټ په زړوکی ئی لعلونه . (۸ سیلابه)
شنی تالی شنی ئی لمنی وی دسروغاتولوډ کی. »(۱٦سیلابه )

* * *

**دښامارسندره** :

دلیکونکی په نظر ، په دی اثرباندی اوږدو مقدمانی خبرو ته ضرورت نشته. ځکه چی دکتاب متن پخپله خپل حال بیانوی . خو بیاهم دلوستونکو دځه آسانتیا دپاره دمتن په اصلی مطالبویو څولنډی خبری بدی نه وی .

«ځانځانی ښامار » دانسانی ژورطبیعت دتمرد اوعصیان بیان دی. اودا واقعیت دری جلا اړخونه لری : یوئــی نفسی انفرادی اړخ دی بل ئی اجتماعی اوسیاسی اړخ دی . اودریم ددی دواړه اړخونو ترکیب دی اوهغه دانسانی موجودیت فلسفی معنی ده. نواوس داپوښتنه پیدا کیږی چی،دداسی انسانی دری اړخیز واقعیت دبیان دپاره به کومه ژبه او کوم راز کلام مناسب وی. ددی پوښتنی جواب به داوي چی ددی بیان دپاره دوه لاری شته: یوه هغه لارده چی دادری اړخه جلا جلاوڅیړل شی،

او دیو علمی تحلیلی کلام په کومک او دعلمی دقیقو مفاهیمو په وسیله بیان شي. او بل به یو داسی ترکیبی کلام وي چی عین مضمون او عین بیـــان دغه دری معناګانی په ځان کی ځای کړی شی ، اودری واړه معناګانی په یو آن بیان کړی شی . دا کلام شعری ترکیبی کلام دی چی دسمبولونو اورمزونو ښخه کار اخلی د ربښتینی شعری کـــلام ارزښت او عمق په سمبولیسم کی دی. په یونانی ژبه کی دسمبول لغوی معنی غوند ول او یو ځای کول دی. سمبول هغه دی چی په یوه لفظ یا یو مضمون کی معناګانی ځایوی او یو مفهوم په بشپړه او کامله معنی راخلی .ظاهری معنی باطنی معنی له ځان سره راکاږی او باطنی معنی په ظاهری معنی کی تجسم کوی دمثال په توګه دکتاب په متن کی د«ښار» یا د«دشت او صحرا » مفاهیم راغلی دی او په بشپړه سمبولـــی معنی را اخستل شوی دی. د«ښار» ښخه مراد پخپله « ښار » یعنی دخلکو متراکمه ټولنه ده او هم ټولنیز ژوندا و اجتماعی روابط او هم ددی ژوند او روابطو تأثیر او شور ما شور دانسان په ذهن او نفس کی تری مراد دی . همدا شان «دشت او صحرا » پخـــپله دغه محسوس واقعیت دی او هم دیووچ بـی حاصله فـکر او دیو بی درده ذهن معنی تری را ولاړ یږی.

په دی مجموعه کی دا شان شعری کلام سمبولی کلام غوره شوی دی، نه کوم علمی تحلیلی او تشریحی کلام (*). او ددی په ځای چی په دی موضوع باندی دری دوله جلا مفصلی رسالی ولیکل شی، یوائی یوه شعری قطعه وویل شوه.

کـه وغواړو چی دا مجموعه دیو بل سره مقایسه کړو نو و به وایو چی دا اثر دکوم علمی او تخنیکی آلی سره شباهت نه لـــری بلـکه دموسیقی آلاتو ته زیات ورته دی. ځکه دلته هڅه شوی ده چی هره پارچه او هره جمله درباب یا ستار دپـــردو پـــه شان وی . چی کـله

---

(*) دداسی علمی تحلیلی کلام مثال په پښتو ژبه کی د لیکوونکی اثر د«جبر او اختیار دیالتیک» دی چی دانسانی واقعیت دنفسی ، اجتماعی او فلسفی اړخو باندی جلاجلا بحث کوی.

ځلورمه پرده وښورول شي، نواتمه اودولسمه پرده هم ورسره ښوري . کله چې کوم نفسي واقعیت په شعري پیرایه کې بیانشي، دامطلب فوري خپله اجتماعي اوسیاسي معنی راسپړي. اودا دواړه بیا دانساني موجودیت فلسفي معنی ته گذر کوي. همدا شان هغه شوی ده چې دا ګسان تسلسل هم سرتر پایه درباب، یاستار دپر دو پشان برابرشي. که لوستونکی ددی اثر په لومړي وار لوستوسترې نشي او دوهم اودریم وارپرې نظر واچوي، نوور معلومه به شي چې هرمطلب چې په هرڅرخ اوپړاو کې بیانیږي، دامطلب په نورو څرخونو او پړاوونو کې څوځو واری په نورو ښو اوپیرا یو کې انعکاس کوي . نوځکه ددې مجموعي یووار لوستل بهلکه د رباب دآلې سره لومړۍ آشنایی وی. یوائې په دوهم اودریم وارلوستو سره به په پردو باندې گوتې ایښودل ممکن شي او دښامارسندره به معنی پیدا کړی شي .

* * *

**د ښامار «پیغام» :**

د ښامار د سندرې لنډ مطلب پدې شان دی :

د دی داستان قهرمان د «نیموشپو لاروی» دی . دا ځکه چې په تورو تورو شپو کې مزلی کوي . اوغواړي چې رڼاته، یعنی دانساني ژوند رښتیني معنی ته ځان ورسوي . داحقیقي معنی هغه دریاب دی چې غاړې ئې له انسان څخه ورکه شوې دی. اودمعنی دغه رڼاساحل ته ورسیدل، لکه دپریانو هیوادته رسیدل دی . ډیر اوږده سخت مزلونه غواړي او له ډیرو پړاوونو او مرحلو څخه تیریدل پکاردی.

ددې معنی دپیدا کولو دپاره، دداستان «لاروی» په لومړی قدم کې ځان تجریدوي . دښار یعنی دټولنیز ژوند څخه وځي . اوپدې مقصد چې د ځان اوجهان په معنی پوه شي، په ځان کې ننوځي . اوګوري چې په سپیرو دښتو او وچو بیابانونو کې مزلی کوي . دا وچ او اغزن ډاګونه د ده ذهني اوروحي جهان دی .

دلته «لاروی» ته دا پوښتنه پیدا کیږی چی ددی آفت علت به څه وی؟ بیا په هغه دشته کی زړی خرابی او کنډوالی وینی او ددغه وران شوی ښار له داستانه خبریږی . د آفت علت ورته معلومیږی . او پوهیږی چی هم د انسان په فردی نفس کی او هم د ټولنی په نفس کی داسی یوه توره بلا راپورته کیږی، او داسی یو ښامار پری مسلط کیږی چی د زړه او ذهن آبادی ګانی رنګوی . د ژوندون چینه وچوی، د ژوند معنی ورکوی . او په ټولنه کی تری داسی استبداد راولاړیږی چی انسانی رښتینی ارزښتونه له منځه وړی، انسان خوری او ښار یعنی ټولنه ورانوی او کنډوالی تری جوړوي . دا بلا او آفت د ځانځانی ښامار یعنی پخپل ځان مین، خودپرسته شعور دی . لاروی د دی بلا تماشه کوی . او وینی چی ښار څرنګ ورو ورو رنګیږي او آخر د مرګ په خوب بیدیږي .

په دوهم څرخ کی «دنیموشپو لاروي» ته دا پوښتنه پیدا کیږي چی دا بلا یعنی ځانځانی ښامار یا په ځان مین خودپرسته شعور څرنګ را ولاړیږي اوله کومه راځي ؟ د دې علت دموندلو دپاره ، لاروی یو بل ګران سفر کوي اود لاشعور د سمڅی تل ته کوزیږي . او ورمعلومیږي چی د ځانځانی بلا دبل کوم ځایه نه راځي، بلکه دانسان د خپل ذهن او لا شعور له ژورو څخه را پورته کیږي. او انسان یې پخپل لاس پر ځان مسلطوي. کوم وخت چی لاروی دژوندلدې لوی رمز څخه پرده پورته کوي، نو پدې نیت چی د ښار خلکو ته حقیقت بیان کړي اود ښامار دبیا راتلو څخه ئې خبر کړي، نو په بیړه بیړه ښار ته ستنیږي. کله چی هلته رسیږي، نو ګوري چی ناوخته شوې ده، او ښامار دیو ظالم اومستبد فرماندار په بڼه په ښار حکم چلوي . او له ښار څخه ئې یوه بدبخته ناانسانه ټولنه جوړه کړی ده. لاروی په خبرو پیل کوي. او خلکو ته حقایق بیانوي. خو خلك ور پوری خاندي او مجنون او لیونی ور ته وایی. لاروی په ښار کی ګرځي

او تماشه کوی چی څرنګ ښار ورو ورو رنګیږی .انسانان تباه کیږی او آخر هر څه یوځل بیا د مرګ په خوب بیدیږی . او بیا له دی نه وروسته لار وی څه کوی ؟ د دی پوښتنی جواب بهلوستونکی د کتاب په متن کی پیدا کړی .

* * *

## د حکیم سنائی غزنوی په درناوی

ددی کوچنی اثر نیکمرغی په دی کیده چه د حکیم سنائی دبین‌المللی محفل په مناسبت چاپیږی . غزنـوی حکیم د تصوفی او عرفانـی جهان هغه ستر شخصیت دی چی دنفس دښامار په مقابل کی ئی بغاوت وکړو، ددی بلا سره وجنګید اوددی توری بلاخطرونه ئی په خپل بی ساری کلام کی بیان کړل . د ده په شعر کی داسی یولوی پیغام پروت دی چی لااوس هم هیڅ زوړ شوی نـه دی . بلکه بـر عکس د اوسنی فلسفی او علم‌النفس په رڼا کی یوه نوی او ژوره معنی پیدا کوی .

حکیم سنائی په خپل مشهوراثر «سیرالعباد» کی دانسانـی معنوی تکامل هغه سختی لاری اوګران پړاوونه ښایی‌چی زمونږ دکوچنی‌اثر لاروی پری‌روانیږی. هلته‌هم‌دیولاشعوری‌اوجامد پړاو څخه سفرشروع کیږی. اوپه لار کي دنفس راز راز بدی توری بلاګانی د مسافر مخـه نیسی اودپرمختګ مانع کیږی. مګر دعقل په زور اولارښودنه، مسافر ټولی سختی‌اوزحمتونه په‌ځان ګالی،ګرانی‌مزلی کوی. دیوه نفسی‌پړاو څخه بل نفسی پړاوته پورته جګیږی. ترڅو چی‌مسافر دشعور او ځـان پیژندنی‌پراخ اوروښانه میدان اوبی انتها افق ته‌رسیږی. «سیر العبـاد» دانسانی رښتینی‌معنوی‌تـکامل اودانسانی ژوند دحقیقی معنی‌او ارزښت پلټنه ده .

# ځانځانی ښامار

راشه وګوره نن د اطراز زما
حقیقت سره قرین مجاز زما

درست عالم مې په بازار په کوڅه وایي
لا و چا ته ښکاره نه دی راز زما

خوشحال خټک

اودا «څانګړانی ښامار» هم دحکیم سنائی ددغی عظیمی هڅی او بی ساری پلټنی یوه کوچنی او ادامه ده. او په یوه بله شعری او روحی بڼه کی او په نورو اجتماعی او فلسفی ابعادو کی. دلته هم دښامار سره دغه سترژور بغاوت راولاړشوی دی او دغه لو یه سخته مبارزه روانه ده.

هیله ده چی پښتانه لوستونکی به دحکیم سنائی غزنوی دلوی انسانی پیغام در ناوی وکړی کوچنی او ددی ښامار کوچنی سندره به دزړه په غوږو نوواروی .

پل سوخته، سرطان ۲۲

کال ۱۳۵۶

چرته پسی درومم په کوم لوری به یې مومم؟
ورکه موندی نشی بې رهبره بې سراغه .
خوشحال ختټک

# پرولوگ

## دورك سمند ر غاړی

داسی وایی:
چیرته لری یولوی منارو .
آوازه ئی دښایست خپره هرلوری.
په‌دی منار کی او سیده یولوی سړی هم. (۱)
داولس په هوښیارانو کی هوښیارو.
سوچ وهل فکر کول ئی کسب او کارو .

(۱) ژان پول سارتر- دفرانسی وجودی معاصر فیلسوف .

دجهان اوژوند رمزونه لټول ده،
په دفترو، په اوراقو، کتابو کی ،
یوه ورځ دوړځ ئی داشانتی بیان کړو :
« ترکوم وخته چیدازمکه داآسمان وی ،
تل دهرانسان دوزخ به بل انسان وی.»
گمان نه کړمه چیدا به حقیقت وی.
ماملکونه هیوادونه ډیر لیدلی .
په صحراکیماوزدی مزلی کړی.
ځنی ځنی حقایق میدی موندلی.
څور شتیارشتیا خبری می راوړی .
یوه داچی:
داژوند څه دی ؟
یومرموزه سمندر دی .
خوددی سمندر غاړی پوری لارشته .
او ددی لاری لومړی پړاو دوزخ دی .
بله دا چی :
جهنم نه چرته لری دی نه پټ په بل جهان کی .
جهنم دهرانسان دی هرانسانته پخپل ځان کی .
ددوزخ په لورسفردی ،
ځانځانی ته ستنیدل تل .
راشه واوره اوس ددی سفرداستان ته.

* * *

یوه ورځ دورځ ماښام خړه تیاره وه .
زه راووتم دښارله شورماشوره . (۱)

(۱) – ښار یعنی گڼاجتماعی ژوند

دروازی‌دښارشوی پوری .
شوم روان ددښت په لوری .
حال ویجاړی .
لټولی می دورك سمندر غاړی. (۱)

* * *

بیابان و، ترزمی وه، توره شپه وه .
خوله ماسره دننه یوه ډیوه وه بلیدله .
داډیوه دتیروختونو خاطره وه .
انسانان می لالیدل دخیال پەسترگو .
دغمجنو فریادونه، ډك لەقهره‌آوازونه ،
غږدمینی‌محبت می‌لاترغوږو .
ماشومان می له نظره تیریدل‌چی،
دکمر په سرروان وو ،
دسیند غاړی منډوگی ته کوزیدل ټول .
غونډول ئی سیندنی ځلانده کاڼی.
لوړبرجونه ئی دشگوجوړول بیا .
هی‌ټوپونه لاندې‌کول‌و،
خښتیدل، زغلیدل و،
شوراو زوگ.
زیړی لمر دمازیگرمی‌ترنظر :
چی‌رمی بەله دشتوراستنیدلی،
شین غباربه ئی ترشاپورته‌کیدلو.
تنور نه به په‌ برـه خوالمبه شول ،

(۱) دژوندون اوښتی‌معنا

تور لوگی به یې تر آسمانه تاویدل.
جنگی وې له گودره را روانی .
شنیدلی، مستی مستی خرامانی .

*   *   *

په دی شانی په هغی تورتم صحراکی،
پته پته غلی غلی ،
یوه رڼا شان دنیاگی می وه ملگرې،
دخپل خیال په لومه گیر وم .
په خپل ځان باندې کړی وړی چاپیر وم .
هی مزلې مې کولې .

*   *   *

چی شپه تیره شوه سهار شو،
نود ښارله شورماشوره ،
وومه دوری دوری تللی .
نه آواز نه انعکاس و .
تپه تپه چپیایی وه .
شپه که توره ترزمی وه ،
خو مزل رڼا رڼا و .
سبایې چی روښنایی شوه ،
رسیدلی ومه زه بیا،
دیوې تورې ناآشنا مغارې خولې ته (۱) .

*   *   *

چی خپره شوه دسهار رڼا هرخواته،
گیرچاپیر دنیا بیشانه ناآشنا وه ،

---

(۱) – یعنی لاشعور

رامعلومه شوه چې ډیر وم‌لری تللی،
انسانانو له جهانه چیرته دوری پریوتلی ،
یوه سوزانه د اغزو ډکه صحرا وه،
غوړیدلې دآسمان ترکنارو خپره لمنه .
له کوم وخته چې جهان راپیدا شوی،
په ډبروکې وچ شوی،
دیو خوړ کوږ وږ بستړو (۱) .
لوی‌لوی غرونه توردیوان وو،
سانیولی په خپل‌ځای باندې کلك شوی ،
پټه خوله ساکت خاموشه ،
یوله بل ترشا ولاړ وو منتظره .
ښکاریدله . کومه لویه حادثه وه را روانه،
وحشتناکه، لړزوونکی، ناخبره، نابېره، ناانسانه (۲) .
نژدې ماوته دسمخې توره خوله وه،
ننوتی چرته لری،
ناپایابه، ورکه ورکه په ناشناناشنا تورتم کې .
* * *
دا عجیبه تماشه وه،
ناڅاپي مې شوه له سترگو پرده پورته .
د ښاریانو د ژوند رمزشو را برسیره،
انسانان ولی استوگنه په ښاروکړي ؟
په برجونو، مانی‌گانو، پخو پلنو دیوالوکې ؟
آدمزاتې جوړوي لوی‌لوی ښارونه .

(۱) دشعوری ذهن ساحه چې ځانځانی شعور پری فرمان چلولی دی
(۲) رانلونکی ذهنی او روحی انقلاب

له ښارونه تاووي لوی دیوالونه .
بیا دننه په کوروکې اقامت کړي .
بیا یوبل سره په شخړو په جنګونو،
په نیکمرغه ژوندون شپې سباکوینه .
له دې ژوند څخه مراد دانسان څه دی ؟
هغه دادی :
له دې دشت څخه ډېرلری اوسیدل دي ،
له دې تورو غرونو سترګی پټول دي .
د تیارې ترزمی سمڅی هیرول دي (۱) .

* * *

انسانان یوازی یوڅه نه ډاریږي :
چی کوم وخت چیرته بهرلاړشی له ښاره ،
بیاناوخته شي ستانه د ښارپه لوري،
توره شپه وي، ترزمی وي ،
دروازې د ښار تړلې کلکی پورې (۲) .

* * *

د ښار هیڅ یواوسیدونکی جرأت نه کړي ،
چی د ښارله دروازونه دورې لاړشي .
خوچی کله شي ستومانه له جنګو له ستیزونه،
نود شپې سره راغونډ شي دکوچنی ډیوې رڼاته .
بیاله دې ناشنا دښتونونه کیسې کړي .

* * *

---

(۱) یعنی دحقیقت سره نه مخامخ کېدل- دلاشعور څخه دار
(۲) یعنی دتجرید او یوازی والی څخه ډار

وایي وایي:

«یولوی غاردی چیرته پټ پروت،

توره خوله ئې هیبتناکه، ننوتی زمکی تل ته،

رسیدلی د دوزخ ناشنا درشل ته.

نیمه شپه تری ډاروونکی ارواګانی راوځی، ځي،

غرو غونډوکې ننوځي.

ژوندي کیږي لوی کونډونه ګړنګونه،

توردیوان تری نه جوړیږي.

د وچ رودکوږاوږ بسترهم،

راژوندی شي اژدها شي؛

بیا روان د دشت په لورشي،

کله کله هم نژدې ځي، دښار پورې دروازې ته . . .» (۱)

داکیسې ټول ماشومان پهدقت اروي.

ځکه ځکه په معنی یې ښه پوهیږي.

اولویان وربانديې خاندي مسخرې کړي.

خوپه زړه کې ښه بیریږي پټ لړزیږي،

* * *

مګر زه ومه لههغه بیابانه،

راتیر شوی بې خبره له خطره.

د سهار په پلوشوکې،

چې ښه ځیرشوم دې دنیا ته،

نویوبل رازحقیقت راته ښکاره شو:

د ښار خلك یوپربل دومره اخته دي،

---

(۱) دلاشعور دمحتویاتو انعکاس په قصو اوافسانو کې

يو دبل په ښوا وبدو دومره بوخت دي .
چې بهر له ځايه نه ځي،
هيڅ نظر په جهان نه کړي .
خبر نه دي :
چې ددوی ښايسته ښار څو ، (۱)
لوړ برجونو ، ديوالو سره ،
په دی دشت اوبيابان کی ډير کوچنی دی ،
ډير نا څيزه ،
يوه وا حه ده په صحرا کی نامحد وده .
جزيره ده په درياب کې ناپايابه. (۲)
خبر نه دی .
که طوفان له ريگستانه را ولاړشي ،
که دابحر نا څاپـی متلاطم شی ،
نو دسترگو په يورپ کی ،
ښارحصار به پاتی نه وی ،
هست اوبود نيست اونابوده ،

* * *

زما بيره ده له دی بی‌خبری نه ،
له دی هسی بی‌غمی نه ،
داريد مه :
چی يوه شپه دشپو به مړه وی چراغونه،
انسانان به ډوب پراته په خوب بيده وی ،
ددی غار له ژورتل نه به را ووځی ،

---

(۱) ـ اجتماعی ژوند ، ټولنيز نظام اوامنيت .

(۲) ـ دژوند اوهستی پراخه ساحه

دتور تمو ارواگانی ، (۱)
په دشتو باندی ښکری ،
اوترخوچی سبا کیږی ،
ښار به نه وی
تری به پاتی کنډوالی وی ویرانــی وی.

* * *

سره له دی هم،
دصحرا لهطوفانومی بیرهنه وه،
نه تشویش دسمندر لویو ځپونه ،
داریدم زه ،
دخپل زړه په ژورتل کی :
له ښاماره (۲)
له هغه عظیم ښاماره ،
چی له دی سمڅیراووځی،
اوبیاځی ددشت په لوری ،
بیانژدي شی ګلی ښارته ،
ښکار کوی دانسانانو .

* * *

زه حیران یم :
ښاریان ولی نه بوګنیږی نه ویښیږی ؟
ګرځی نه اروی دوینس زړه په غوږ ونو ،
پیغامونه پټ پراته په افسانو کی؟

(۱) اوهام اوخرافات .

(۲) ځانځانی په ځان مین خود پرسته شعور .

په درون کی می پرا ته دی ډیر گنجونه
په معنی کی لـکه کان دسیـم اوزریم
که می لاس لکه دریاب خالی لیده شی
دتـتر دنئـه ډک په در گوهریـم
که می حلق دتندی وچشی په همت کی
پر وادار کلمه په حوض دکو ثریـم
لا یوشور راځنی لا رنه وی بل راشی
مگر زه پیـدا په ورځ دشور وشریم
خوشحال ختټک

# لومړی څرخ
# تورښامارد مرګ په لورځی

لومړی پړاو : هغه ښارچی ټول ښاریان ئی
رنځوراَن وو
دوهم پړاو : دمه ځای چی پکښی ځای
د د می نه و
دریم پړ او : د دوزخ له درشل دی خوا
څلورم پړاو : د دوزخ له درشل ها خوا

ددی سمڅی ژورتل نه،
یو پیغام را پورته کیږی .
خود دوی ورته غوږونه کانه ښکاری .
ارویدلی به دوی نه‌وی ؟
چی په تیرو زمانو کی یولوی ښارو
دښاریا نوله غفلته ،
یوښامارپری مسلط شو،
چی خوراك ئی انسانان و .
دښایسته ښارنه‌ئی جوړه کنډ واله کړه.
آدمیان ئی کړه دننه په خپل ځان کی .
ښاردمرګ په خوب بیده شو.

* * *

مگرزه اوس دوری پروت یم .
طولانـی سفرمی کړی په چوپتیا کی .
انسان دی لری لری .
له ښاروڅخه‌یم دوری پریوتلی .
غزمی‌چاته نه رسیږي له دی ځایه .
لاروی دنیمو شپویم .
دغار توری خولی ته ناست یم .
هك حیران یم چی به څه کړم ؟
دښار خلکوته به‌څه شان رسومه ،
خپل پیغام اوس ؟

لومړی پړاو

# هغه ښار چې ټول ښاریان ئې

## رنځوران وو

لاروی دنیمو شپووم .

هلته ناست دسمڅی خولی‌ته.

هك حیران وم .

نژدی هلته.

ښکاریده ړنګ دیوالونه .

کنډ والی وی دکوم زوړ لرغونی ښاردا (۱)

رواقونه‌زوړندزوړندمرمری‌ستنی‌ولاړی‌څنی‌ملاستی.

داسی فکرمی کولو:

اخر څوك به‌راپیداشی .

زمانی به‌وریادیږی تیری‌تیری

ددی ورکی آبادی

خبر به واخلی.

---

(۱) دذهن او روح بخوانی آباد حالت

ددی ښار تیرشوی ژوند به رابیان کړی .
راته وبه کړی کیسی زړی زړی هم.

* * *

## یوجنت خاروین خاورین

وایی: دلته ښکلی ښایسته ښارو. (۱)
آوازه یــی دښایست خپره هرلوری .
سیاحان په له دی ځایه تیریدل تل
شپه اوورځ بــه یــی مزمل کړو
په ځنگلو په چمنو کی دسیندو نو رودخانو په غاړه غاړه
څریدل به گرځیدل به مست وحشی آسان هرخواته
بی له داره، بــی له قیده
غرځنی بهوی روانی ،شنو دښتو کی ،
بیابه تللی نژدی ښار ته،
ماشو مانو سره یوځای لوبیدلی .
له سهاره ترماښامه ،
دطوطیانو دبلبلو چغهارو په دروسپردروسمسورباغو کی.
انسانانو ، لازده نه و دپنجرودجوړۏ چل .
ښار بــی دربی دروازی ۏ.
نه خندق نه کوم دیوال تری ۏتاوشوی.
ښکلی ښکلی وو کورونه آبادشوی .
گڼ باغوشنو چمنو کی .
لوی لاری هرخواتللی .
سیندپه غاړه شنو دښتوگورو ځنگلو کی.
ځوانو پیغلوبه داښار سمبالولو.

(۱) دخود پرست شعور دتشکل څخه تر مخه

یابه ناستی دځلمو سره غیزپه‌غیز وی.
سیند په غاره په بیشو کی.
رازونیاز دمحبت و.
ښکلول‌و،زغلول‌و.
اوسپین زیری مشران‌به
په دیرو کی ، دچنار سیوری ته ناست‌ؤ.
تدبیرونه،مرکی وی،مشوری وی.
ماشومانو به شورزوږ کړو .
خرپیدل به په اوبو کی.
لوبیدل به‌یاد دښت دغرځنو سره .

* * *

که‌به‌څوك اخته په قهر په‌غضب شو.
یابه زړه دچاغمجن‌شو.
پدی رنځ اخته‌رنځورو،هم‌به‌یی‌ځان‌رنځوګانه.
پدی ښارکی هم‌یوپوخ حاذق حکیم‌ؤ
ددی هسی رنځورانو یی علاج کړو.

* * *

انسانانو لاموندلی چیری نه ؤ.
غلامی دبادارۍ چل.
په‌دی ښارکی نه هیڅوك دچامریی‌ونه بادارو.
وینځه‌نه وه،پی‌پی نه‌وه،فرماندارنه .
فرمانداره حقیقی په هغه ملك کی ،
ایلك یوازی ماشومانؤ.
ځکه ځکه خلکو دا شانی باورؤ ،
چی‌کوچنیان له طبیعت سره نژدی دی،

دعالم پټ پټ رمزونو نه خبردی .

رښتیا هم چی ماشومان به پوهیدل ښه،

په خبرو دمرغانو ځناورو.

ددښتو غرونو رغونو،

دریابونو، ځنګلونو،

ارواګانو سره اشنائی.

دوی خبرۍ چی پرته ده چیرته پټه،

توره سمڅه هیبتناکه، ناپایانه.

رمز اسرار دمغاری ورته معلوم ؤ .

نو داځکه په مهم مهم کاروکی،

دکوچنیانو نظریی ته درناوی ؤ.

دکوچنیانو په مسلات به،

غټ کارونوکی تکل شو.

نو داځکه کله کله،

مشران اوماشومان به غوندیدل ټول،

دچنار ترسیوری لاندی په دیره کی،

په خندا خندا په لوبو،

غټی غټی فیصلی به شوی روانی.

* * *

## لوی فاتح دټول جهان

یوه ورځ دوړځی کله،

چی ګلونه دهمیش په شان تازه وو،

ماشومان په شوراوزوږ درود په غاړه،

ځوانان پیغلی ناست په رازونیاز دعشق وو،

اومرغان بوخت په چغارو ،

ناڅاپی راوالوتله ،

یوه ترخه سره سیلۍ وه ،
له دښتو له بیابانورا پاڅیدله،
دافق دکنارو نه،
توری وریځی شوی راپورته .
ځنګ چی لمر په پریوتوشو،
نوله ورایه راښکاره شو،
یوناشناسړی په آس سپور.
آس یې تور،جامې یې توری،(۱)
پولادی اوزده نیزه یې وه په لاس کی،
ډال ترشاتوره یې ترملاوه،
لینده غشی ورسره ؤ،
هم په‌سریې یوه خوله پولادینه ،
برې خیره داژده‌انقش.
را روان ؤ،راروان ؤ
دښارلوی دروازی‌ته رانژدی شو.
له نژدی خیره بل شان وه:
دواړه‌سترګی یې دوینو کټوری ؤ.
مخ بشری نه یې غضب لمبې لمبی خوت،
دیومزاجی،دیو پیکری‌دیوانسان ؤ.
راروان ؤ،راروان و.
ښځی نرزاړه ځوانان هم،
ماشومان ټول،
رابهر شولوله‌ښاره،
دناشناسپورتماشې ته.




---

(۱)تور رنګ: دناپوهی،اوناببنا زوراوقدرت سمبول

تورلباسی سپور نیزه کړه خپله پورته.
جګ آوازیی هیبتناك ؤ
ډك له قهره لهغضبه،
داوینایی سڼارته وکړه:
«-تاسو وایاست زه بهڅوك یم؟.
زه خو «زه» یم، زه «ایګو» (۱)یم.
درست نړۍ کې پهلوان یم،
لوی فاتح دټول جنګونو دجهان یم،
لهدی وروسته ستاسو سڼار زماتابع دی،
تاسی ټول دقهرمان ترفرمان لاندی.
که هرڅوك زمافرمان تهغاړه نه ږدی،
نو سزابهیی پهدی دم اوپههردم،
همپهدی نیزه وژل وی،شیرول وی.»
سم له دیوینا سره یوځای،
بهلوان پهلور دخلکو،
اشاره دنیزی وکړه پهدری واری.
بیاییووی:
«--هغه څوك چیمی فرمان وړیپهسرسترګو
هغه ټول بهپه امان وی.
زه ددوی دسرو سیوری،
زه ددوی دژوند ساتونکی.»
پدی وخت کی نژدی هلته،
غرڅنی وه ګرځیدلهمسته(۲) مسته،

(۱)Egoزه- مرادپه خپل ځان متمرکزاو په ځان ینشعور
(۲) غرڅنی:آزاده اوبی ګناه مینه او محبت٠داستبداد
لوی دشمن آزادی بی ګناهی اومینه ده.

ساده زړی، بــی خبره، وه معصومه پاکه
قهرمان ژر پهلینده کی غشی کیښود.
پهیو کش غشی روان شو.
غرڅنی زړگی شوڅیری.
شوه خپره وره پهخاورو.
نویـی مخ کړلو دښځو پهطرف بیا.
داسی ووی:

«ـنن میاوږد مزل کړی پهدښتو کی.
لږ ستومانه شانتی ښکارم.
هم می زړه کیږي خوراك ته
ورځیلاړي شپـیپالنگ را ته تیاره کړئ
هم دغه غرڅنـی را وریته کړئ

یوځل لوی عظیم سکوت پههرخوا پلنشو.
غرڅنی لاړی پهتیښته،
لویوغرو لیری دښتوته.
هم له دغه زمانی نه راپدی خوا
لاتراوسه،
غرڅنی بیرته ستنینه شوی ښاروته.
تریدلی رهیدلی له انسانه.

مرغی هم پههغه سات شولیخاموشه.
ځنی لاړی شوی کوچی نورومـلکو کی.
نورو سوړیلتولی، پټیدلی، تریدلی.

نارینه دقهرمان ترفرمانلاندی،
پهکار بوخت شول.
جوړوه یی دښار گرد چاپیر دیوال لوړ،
هم برجونه مستحکمه حصارونه،
هم یولوی ژور خندق کیندل کیدلو.

بیاچانه اوریدشورزوږ دماشومانو
ځکه دوی له خپل کورونه ،
بهرنشو نور وتلای.
زلمو پیغلوته ؤامر،
چی بیاهیڅ په ښکلولوراز دمینی،
خپل وخت نه کاندی تلف نو.
او داځکه،
فزماندار بیشان له دوه ځیزه بیزارؤ:
عشق بازی یوه دځوانانو، بل خندا دماشومانو.
ښځی بوختی په پخلی شوی،
په خدمت شوی، په هغی ښکلی ما نی کی،
چی آبادؤدځوانانو دلاسونو په تښاکو ،
پهخولو دمړوندنو.

* * *

**اژدهاته ستاینځای.(۱)**

ستر تولو اکه پهلوان بیا،
خپلی هسکی ما نـی‌خوا ته ،
آبادی یی بله وکړه باشکوه .
نوم یی شو دعبادت ځای .
دامعبدو، ستاینځایؤ، دښاپمارمار
دتولواك مجسمه وه ،
له دبرې جوړه شوې
نیم وجود یـی‌دانسان نیم اژدها و
ډیره لویه باعظمته وه ولاړه .
دمعبد دگنبد لاندی .

(۱) خودپرست شعور یو بت‌پرست شعـور دی او دخپل ځـان ستایی او نمانځی ته اړوی.

یوبو ډا یـی ستر راهب و،
جامې ژیړې، کمیس اوږد .
سرسرتورهم،
دبت پښو ته به تل ناست ؤ.
بیابه ده دبت له خولې کړه بیانونه،
امر اونهې، تهدیدونه، اخطارونه .
زوړ زلمې نارینه ښځې، بهورتلل تول ،
هره ورځې، لمرخاته لمر پریواته هم،
دعاګانې ، عبادتؤ، پرستش داژدهاو ،
قربانې به یې کولې، شکرانې بهیې راوړلې .
تول ښایسته ښکلې شیان چې،
دهرچاؤ په کوروکې ،
تول راتوی خرې خرې شول،
دبت پښوته ،
زیبایـی له ښاره ولاړه،
په معبدکې زندانې شوه.

* * *

له ښاریانونه یوازې،
یودازوړ راهب خبرو،
چې دالوی قهرمان څوك دی .
ده بهکله، دمعبد نیمه تورتم کې،
دخپل خاصو شاګردانو سره ناست ؤ.
پوهول به یې په اسرارو په رموزو.
دهبه داشانتې بیان کړو :

## سراعظم رشتی

رهبانانو! واورئ دابیان

له رمزونونه خبرشئ پټ پنهان

زمامدار زمونږ لیوه دی،

لکه وینوته چی تږی وی دغرورغولیوان

زړه یی کلك لکه تورکاڼی دبیابان لکه سندان

خوګاڼی دی آدمیان

خوړانده دی عالمیان، عبرت نه‌اخلی په یوآن

« رهبانانو! له‌رمزونونه خبرشئ پټ پنهان

وایاست له‌ما سره په دعا :

ای څښتنه ته‌باچایی دجهان

که‌هم وڅکی سمندروینی، تنده ستاپسی لمبه شی صدچندان

که هم وخوری غرونه غرونه زنده جان، ولږه ستا پسی زیادت کا لا شدت کا

په لیوانوکی لیوه له‌وږو وږی، په‌دریاب کی پروت‌نهنګ له تږوتږی.

خوکاڼه دی آدمیان

خوړانده دی عالمیان

عبرت نه اخلی په‌یوآن

رهبانانو راشئ واورئ دابیان،

خلکو ته‌وایاست، خولی توی کړئ پدی او ردخپل جبین دمتهو لاسو

څودتندی لمبه‌پورته ترآسمان شی.

خونړئ قربانی وکړی دی لیوه‌ته

څوچی لوږه‌لاخپره شی په جهان

نیوهیزی دښار خلك چه ځښتن زمونږ لیوه دی، پهلیوانو کی لیوه په وزو کی وزی پهدریاب کی پروت نهنګ لـه تږوتږی.

* * *

«اوس یی «اسم محضه» په خوله راوړمه

هغه رمزد ټولو رمزو «سراعظم» بیانومه

دغه سرباندی خبرشی، خوله ځانه یی پټ ساتئ په خپل زړونو کی پنهان

همله‌خلکو یی پټ ساتئ داعمالو په جامو کی

نو بهخلاص یاست له‌ګزنده له غضبه په امان

« رهبانانو ښه‌خبر شئ‌خوهیڅ‌وخت په‌خوله‌وانخلئ‌دغه‌نوم

لوی بادار زمونږ ښامار دی دښامارمونږ بندګان

په‌چابکو کی چابکونه چابکه

دهرزور دزور دپاسه پهلوان

خوړانده دی عالمیان

خوکانه دی آدمیان

عبرت ناخلی په یوآن

* * *

« رهبانانو راشئ واورئ دابیان

له‌رمزونو نه خبرشئ پټ پنهان

یوکوچنی چنجی پیداشو له‌هګئ نه

ددی سیمی دپستی نمناکو خاورو پهزانګو کی زنګیده

داچنجی هسی چنجی ولکه نور هسی چنجیان

بی‌لاسه بی‌پښوپه ستر‌ګو ړوندو، بی قدر ته‌بی توان

ویل بهخلکو داچنجی دی

خبرنه ؤ داچنجی نه‌وبلاوه اژدهاتوره بلاوه،
چی رالوی شونو هیچاته ورته نه ؤ
شباهت یی ویوازی‌دخپل ځان
دی‌مارنه وځکه ده لرل ځانگونه
مرغۍنه ؤ ځکه ده لرله خوله اوزده غاښونه
ابوالهول ته ورته نه ؤ
ابوالهول خوکړی پوښتنی له انسانه
چی‌هرڅوك به‌لاجواب شونوخوراك به‌د بلاشو
ده پوښتنی‌نه کولی
سوال ځواب یی عادت نه ؤ
بس فرمان به یی صادر کړو
هی امرونه به یی کول
چاچی‌غاړه له‌فرمانه غړوله هغه غاړه غ-و څیدله، هغه سر
خوړل کیدلو
دی یو داسی ځناوروچه چیچل به‌یی هرحیوان
خودی چاچیچلی‌نه شو
ژوندی سری به‌یی خوړلو، خودی چاخوړلی نه‌شو
دی داسی سورانگارو چی‌هیڅ نس‌سره‌نه طاقت دهضمولو
نه‌تالو سره قدرت دتیرولو. که‌یوسربه‌تری جدا شو نولس
سره به‌یی نور راشنه کیدل.

ددی سیمی زمامداره تول واکمنه آلهه دمحبت وه
شوه خبره‌له احواله چی‌یوه‌بده بلاتوره ددی‌سیمه ورانوی
نوراغونډیی‌له‌هیواده‌هره خوا کړل زورورپهلوانان‌قهرمانان
ورته یې ووې : که څوك مړدغه ښامار کړي، یایې وشړي
له ملکه، نویو لوی عظیم انعام به‌یې نصیب شي

د ژوندون چینه به یې هیڅ وخت وچه نه شي
هم پیدا به کړي د ورك سمندر غاړې
دماتې ناکامۍ بیځایه درده یادفتحې کامیابۍ کاذبه خونده
به آزاد شي
نه پوهیږم دا انعام قهرمانانو ته ښکاره شو بې ارزښته
یا په ځان کې یې زورنه لید دښامار سره دجنګ
نه ښامار کړلو چامړ نه هیچا وشاړه له ملکه

* * *

زموږ لوی څښتن ښامار چې لویده تنده یې نوره زیاتیده
ولږه یې نوره ډیریده
دده تنده دانسان وه
دده ولږه دجهان وه
نور اووت له هیواده ددښتو په لور روان شو
ډیر لیوان یې تورتور مات کړل
ډیرې وینې یې وزبیښلې
څو قوي شو
کاروانو نه یې بیشماره لوټ تاراج کړل
زورور شو
دورې دورې هیوادونه یې نیول، لوی ښارونه، بې حسابه
انسانان یې کړل دننه په خپل نس کې
ټول جهان ورته تسلیم شو
خونړی قربانیګانې شپه او ورځ دده په مخکې
ټول مخلوق یې بندګي کړه پرستش کړه غلامي کړه
بس یوازې ددې سیمې خلك جهل کې ګمراه ؤ

آلهه دعشق اومینی یې ستایله
اوزه‌وزدلوی ښښتن جلال عظمت نه‌یې سرپیچي کړه.

* * *

«رهبانانو له رمزونونه خبرشئ پټ پنهان
زموږ لوی ښښتن ښامارخوپه دور دسته هیوادوکې وینی
وښکښې دریابونه
لوی ښارونه بې‌حسابه انسانان یې کړه دننه پخپل نس کی
تنده یې‌بیاهم ماته‌نه وه
ولږه یې لاهم‌زیاتیدله
ورپه یاد شوه ورته خپله‌زړه سیمه خپل وطن د چنجی‌توب
له‌هغه ځایه چی‌تللی وبهرهم هغه ځای‌ته راستون‌شو نورهم
وزی نورهم تږی

* * *

رهبانانو راشئ واورئ دابیان
له رمزونونه خبرشئ پټ پنهان
لوی ښښتن زموږ ښاماردی دښامار موږ بندګان
په لیوانوکی لیوه په وزو وزی
په دریاب کی پروت نهنګ له تږو تږی
خوړانده دي عالمیان
خوکانږه دي‌آدمیان
عبرت ناخلي په یوآن

* * *

**بد رنځونه بــې درمانه**

له یوڅه مودی نه وروسته ،
په ورو ورو شوله روښانه داخبره،

چی د یستر لوی فرمانداره، قهرمان لوی،
ستر فاتح دټول عالم خو،
ډیر راوړي وله ځانسره میکروبونه دساري‌ساري‌امراضو،
یومهلك زهرقاتل یی،
له وجوده خپریدو هم .
ده راوړي و دې ښارته،
دری مرضه :
یومرض غم اوخپگان ؤ
بل‌مرض قهراو غضب ؤ .
دریم ډار او واهمه وه .

* * *

لومړی شخص چی مبتلاشو،
په مرض دغم خپگان زر،
داهغه حاذق حکیم دښارطبیب و،
مرض دومره سخت کاري ونا ببره
چی‌فرصت نه‌د دارو نه‌د درمان و .
څوچی‌خلك خبریدل بیا .
زوړ حکیم و سفر کړی بل‌جهان ته .

* * *

دا امراض په هرچاباندی په‌یوشان‌پوری کیدل‌نه .

تل‌ځوانان به پریوتل زیات،
دغصی‌قهر اوغضب په سخته تبه .
زیات شمیرښځی ماشومان اوبوډایان به
په‌مرض دغم خپگان اخته کیدل .

فقط ډاراو واهمه داسی‌مرض و،
چې توپیریې نه د ووړکه نه د زوړ، که
نه‌دښځې‌نه‌دنر که
په هرچابا ندی یوشان پوری کیدلو .
نودا ځکه بوډایانو، به ډیر عمرنه‌کولو .
زلمو‌تل‌شخړی جګړی کړی، دښمنی کړی ،
مرګ قتلونه به‌یې کول،
تویولی به‌یې وینی یودبل تل .
ډیر کوچنیان به دځوانی له‌عمره مخکښې،
دخپګان په‌نری تبه، رنځیدل اومړه کیدل .

* * *

که مرض دغم‌خپګان به‌لږ کلارشو ،
که دقهر اوغضب تبه بهلاړه ،
واهمه اوډار هیڅ وخت نه ورکیدلو .
ساري بد مرض خوداو،
چې‌جاري تل شامدام و .
نوربه خلکو یوپربل اعتماد نه‌کړو
نه‌باور دچاپه مینه محبت و .
نه‌دوستی‌وه، نه اخلاص‌ؤنه‌رشتیارشتیاخبری .
ډاریدل خللك یوبل‌نه،
له خپل ځان‌له خپلی ژبې له‌خپل سیوري ،
د خپل کورله دیوالونه .
له دي ډاره چې‌خبری څوك وانه وري،
په تورتم توره تیاره‌کی ګونګوسی ؤ .
یوله بل سره په غوږوکی پوسیدل ؤ .

نه‌له چاسره جرأت دگرځیدو ؤ،
چی بهرله ښاره لاړشي،
له دښتوله بیابانونه،
له‌هغی‌خوا، چی‌راغلی، قهرمان دښارپه لور و،
واهمه وه له هرچاسره .
په دروپه توروغروکی،
پټوپټو مغارونه، ډاریدل دوی .
توله شپه به دوی لیدل ډیر،
ډیرخوبونه پریشانه،
وحشتناکی هیولا خوب ته ورتللی،
نیمه شپه به بوگنیدل دوی،
پاڅیدل دوی، لړزیدل دوی .

* * *

ارمان ارمان افسوس افسوس !
خلك نه‌کړه چاخبرله اصلی رازه .
چی‌داځه رنگه‌آفت په دوی نازل ؤ؟
داځه شان توره بلاوه،
چی‌منگولی یی د دوی‌په زړونو ښخی ؟
خلك نه‌کړه چاخبر هیڅ :
داخو هغه اژدها افسانوی ؤ،
چی‌د خلکو له غفلته،
وراغلی‌له دښتونه،
په دی ښار و کښیناستلی .

دعالم په دریاب ډو به دپایاب طمع و مکړه
داپایاب دی ډیر و غو ښتی خبر نشول له ساحله
خوشال ختټک

دویم پړاو

# دمه ځای چې پکی ځای ددمی نه و

**دزړه په کنډوالوکی تور ښامار پروت**

ډیری ډیری مودی تیری په دې شان شوی .
څوناڅا په شولو پام دقهرمان ستر،
چې هیڅوك شاوخوا نشته ،
دی بادار ، ستر بادار دټولو خلکو،
خو هیڅوك دغلامی دپاره نه ؤ

دی واکمن و، دټول واك دده په لاس کی،
خونه مینځه‌نه نوکروو ، چی پری‌واك وچلوی څوك

فرماندار فرمانرواؤ ،
خو خادم نه ؤ فرمان دوړو دپاره

په‌هغی هسکه مانۍ کی،
دی یوازی ژوندی سری ، یك تنهاؤ .
ټول مړښارو ، چپیائی وه هدیره وه . (۱)

ښارداوسپنی کلاوه ،
دروازی یی تل تړلی .
ځکه هیچا نور په هاخوا گذرنه کړو.
چمنو نه شنه باغونه پاتی نه وو.
هره خوا شړی میری وی .
هره ورځ به پکښی لمربیا ،
سور تنورلمبه کولو .
هره شپه سړه سیلۍ وه ،
خاوری دوړی باد یدلی،
سینگیدل به اغزی غنی .
ځنگلونه جل وهلی ، ونی سوی .
غرو ځیره وه بدل کړی،
ټول خرپر په ایرو رنگ ؤ .
هم سیندونه ، هم خوړونه ،وچ پراته وو.

---

(۱) په ځان مین شعور متوجه کیږی چی بهر اجتماعی جهان ئی گډوډ کړی دی او اوس یی دخپل دنن نفسی جهان گډوډی او خرابی ته پام گرځی . او په ویجاړه نفسی جهان کی سیر کوی .

او به لیری په کوم بل ځای بهیدلی .
کومې لاری لوی لوی ، چیورتلی دښار په لوری
هغه تولی ورکی شوی ، په زوزانو ، په اغزوکی .
کاروانونو نورګذر په دی خوانه کړو،
چرته لری تیریدل په نوروسیمو.

* * *

**دچپتیا په تربمو کی شور ماشور:**

دازمونږ ستر قهرمان لوی پهلوان بیا،
دخپل ځان صحرا په کنج کی ،
لاشعور مغاری خولی ته، په مودو منتظر کښیناست .
ترزمو دمغاری ته بهیی کتل ،
دهغی تورتم سکوت ته غوږنیولی .
ده ګمان کړو:
چی ژوندون له دشت صحرانه کوچیدلی ،
تللی تللی سمخی تل کی ځایدلی .
زړه به داسی ورته وی چی:
پټ په دغه ناکلاره کلاری کی،
ددغه ناشنا سکوت په ژورتل کی ،
لوی دریاب(۱) پروت دی خاموشه .
مــخ یــی رون دائینی په شان ځلیزی .
هم نری وزمه چپی چپی چلیزی .
ددریاب لونو آواز خوږ ،
راوړی ځانه سره له دوری .

---

(۱)دژوند رینبتنی معنی

بیابه کله غرهار دده ترغوږ شو .
نو گومان به یـی کولو:

چی‌خالق دسمندر(۱) په غضب‌شوی،هی غریږی غرېږی
بریښناگانی هم شرقیږی ، هم کرسیږی .
بارانونه ترپهار کړی.
لوی موجونه ، غرونه غرونه د ساحل په لور روان دی .
ورځی جنگ ته دلوی هسکو گرنگونو ،
ډزوی ددریاب غاړی ، لړزوی پرښی پاڼونه .

* * *

بیابه زمکه دربیده دده په غوږ کی .
نوگومان به یـی کولو :
چی رمی رمی وحشی آسان زغلیږی ،
په کوم لوری تاخت وتاز کاندی شیهیږی.(۲)

***

یابه یـــي کله ارویدلو هیبتنا که غرمبهارهم ،
چی راته له‌لیری ځایه.
هم ملگری دی غرمباسره بل آوازو :
شرنگیدل وجربیدل دزنځیرونو .
ده بوی چی تور دیوان زنځیر ترلی ، (۳)
زنځیرونه ماتوی ځان خلاصوی اوس .
نژدی هلته دغارخولی ته ،
غوریدلی تورجالو نه تنابونه ،

---

(۱) دژوند بنیادی قدرت .

(۲) دژوند غریزی او بنیادی تمایلات

(۱) هغه طبیعی تمایلات چی زپل شوی او په شاوهل شوی دی

پکی ناستی توري غمي (۱) غتي غتي ،
غلی غلی ، چېه خوله وی منتظری ،
چي را گير کړی ، په خپل دام کی ،
له کوم ځایه ، نامعلوم ښکار .

* * *

دماښام ښاپيره کی وو(۲) په زرگونو
پرقول يی په‌یوشان وزرځانگونه ،
په تورتم کی .
پوهيده چی ، هلته سترگی دی ځلیزی لکه‌ستوری ،
ده ته‌گوری په ځیرځیر له هری خوانه .
دغه ټول پهره داران دترزمی وو
دماښام خړی ته غلی ناست په تمه ،
چی بياوکاندی لښکری ، چی بیاونیسی دښتونه .

* * *

هلته لیری پاس په وچه ونه باندی ،
یوگونگی په یوښاخ ناست ؤ ،
دواړه سترگی گردی گردی ،
په بیشانه تعجب کی ،
قهرمان ته یی حیران حیران کتلی .

* * *

قهرمان به په خپل ځان کی ،
بیاایدل چی ،

---

(۱) اوهام

(۲) - دخود پرسته شعور خیالونه

(۳) - پڼپله شعور چی ځان تماشه کوی

دهستي په ژورتل کې نابېره به راوېښن شو ،
هغه تږی دسيندونو ، دريابونو ،
هغه وږی ، دجهان اودژوندون هم .
نوبه ده له ځانه داشانتې تپوس کړو :
«— دا اوږ دې اوږدې مزلې ،
په زوزانو ، په اغزوکې ،
دوچ خوړ په غاړه ناست انتظارونه ،
سرګردانه ګرځېدل شړومېروکې ،
څه دپاره ؟ چا دپاره ؟
ګوندې نه چې، هغه ورکه نامعاومه لټومه ،
هغه ورکه نامعلومه ، چې‌هرآن رانه ورکېږي ،
زما خپله بې‌دردې کې ،
ددې دشت دکلکو کاڼو ، وچ اغزوپه بې مهرۍ کې ،
ددې غروبې پروا پرښو په سختۍ کې . »
« څه شوه څه شوه ، دژوندون چينه مې څه شوه ؟
چې هرکال‌به پرې اختر دپسرلي ؤ .
طبيعت به ځان سينګار کړو .
تور تورغرونه ، توردېوان داهسې نه ؤ .
شنې جامې دښاپيرويـې وې په ځان کې ،
شنه لمن دزمردو .
سروګلونو رنګارنګ به ،
سرراپورته کړوله خاورو .
بياروانې به هرخواشوی ،
قافلې درنګ اوبوی هم .

درمندونه به دمشکو دلو نگو ،
په دښتو وچو میرو وو . »

« څه شوه څه شوه ، دڅوندون هغه چینه اوس ؟
چی دخوړ په وچ بستر کی به یی روان کړل ،
مست رودونه .
دسیندغاړی وی آبادی ،
دستومانو دمه ځای‌و .
دوری دوری هیوادونه ،
تږی ستړی مسافر په دوړو پټ ، دلته راتلل، دمه کیدل . »

« راته ښکاری چه مودی مودی بهٔ کیږی ،
لاروی له هیڅ پلوه ، په دی خوانه دی تیر شوی .
نه کوم پل دقدمونو ، نه کوم لاره نری ښکاری .
او که وو اوس ټول پټ شوی په زوزانو په اغزو کی.».
بیابه داسی سوچ ورتللو :

« — گوندی نه چی‌دژوندون ورکه چینه می ،
ننوتی ده دې غارته ،
پریوتلی ژور تل ته ،
نوره نه راپورته کیږی ، داری نه‌کاندی بهرته . » .
« ماخو تل ویلی ځانته :
دا اوږدی اوږدی‌استوگنی په‌ښارو کی ،
ښه کارونه دی .
کوم خطر به پکی پروت وی ، ناڅاپی به راولاړ شی . ».
« ماخو تل ویلی ځانته :
داهر کله غونډیدل دډیوی خواته ،

دادنورو نژدی والی څخه ډاډ هم ،
پیښوی یولوی ضرر ،
لری باسی انسانان ټول دژوندون له پټه رمزه،
هیروی په انسانانو ،
خاطری ددی دښتونو ، گړنگونو ،
خاطری ددرندو سیورپه دروکی ،
خاطره هم ددی سمڅی .
هم دژوند هغه چینه شی ترینه هیره ،
چی پرته ده ، ددی غارپه ترږموکی .
په دی هیره هیره باندی ،
داچینه دژوندانه ورو ورو وچیږی . » .

* * *

**ښاپیری دعشق اومینی: (۱)**

بیا وریاد به‌شولو تیر هغه وختونه ،
چی‌به پروت و دژوندون دسیند په غاړه ،
اوسیده به دوجود دچینی خواته .
زمانی وی تیری شوی ډیری ډیری ،
نه نارنج و ، نه یی گل نه یی بویونه .
نه مرغی وی ډلی ډلی ،
چی‌ماښام به زوگیدلی په باغوکی ،
لټولو به یی ځای دبیدیدلو .
هر سهار به په چغار راویښیدلی .
ډیر کلونه وو تیرشوی ،

---

(۱) دژوندرښتینی منبع یعنی مینه ـ دځان اوځانځانی مینی پر ضد.

چه یی هیځ نه‌اروېدلو ،
دهغه‌ژورېدک‌سیندد ایم‌غر ارچی
تل رغښتلو ددری‌په‌زوړ بستر کی .

حتی هغه شرشره وه چېه شوی ،
چی‌همیش به بهیدله ،
ددایـی‌پشان به ناسته هره شپه وه ، دده سرته ،
ورته کړی به یـی‌ترنیمو نیمو شپو هم ،
ددیوانو ، دپریانو افسانی تل
په لومړولو مړومود وکی ،
دی چپتیا ته قهرمان دومره پام نه کړو .
حتی‌دایـی په یادنه ؤ :
چی هرورځ به مازیګر شو ، زیړی لمرشو ،
کوز دغرونو په لمنو ، به شینکی غبار راخپور شو ،
پاس دسپینو غرو په څوکو ،
زیړی لمر هرخوا شیندلی ، دسرو زرو پلوشی بیا .
چی‌به اوړی شو ګرمی شوه ،
ویښ به پروت ترنیمو شپوو ،
په هغی چپه دنیا کی شورماشورو .
ددریاب دایم غرهارته به‌یی غوږو ،
تماشا به یـی دستورو دآسمان کړه .
کهکشان لمن‌څلانده ،
دی تری څوړندزنګیدلو ، لوبیدلو .

* * *

ترڅه وخته ، کله کله به یی‌ستوروته نظرشو .
خوورپاتی نوره نه وه ، صفایی دتیر وختونو .
تیول پټ کړی ، محوه کړی ، رناګانوماشینی‌وو ،

رڼاګانې زنداني په فانوسو کې،
مشعلونه په زنځيرتړلي ځوړند .

* * *

نوريـــې هيڅ نه يادېدلې،
تودې شپې دپشکال بيا،
چې ناڅاپه بهغرارشو،
تور سيلاب به را روان شوله ځنګلونه،
لوېـي ګرګي به روانې، غتې تيزې رغړېدلـې،
دسيلاب په هسې شپو بهسيندبيشانهپهغضب و،
داوبورنګ به تلك تورشو،
لـــکه زړه دطوفاني شپـــې.
د درياب چپو به زګ کړو، شوراوزوږ کړو.
دسيندغاړې ښورېدلې، هم پانونه، پرښې تيزې
ګړزېدلې .
حيرانتياوه،
چې دهځرنګ هيره کړې،خاطره دهغې شپې وه
چې طوفانعظيم راکوزلهلويوغروشو،
سيندپهقارو،ناقلارو،غرېدلو.
پهدې وخت کې راپيداشولو له ورايه،
دچپومنځ کې روانه،يوهګوردمه لويهلويه.
ناڅاپي دخلـکو پام شو،
چې دپاسه پهګوردمو،
يوهمرموزه سره رڼاوه ځليدله.
که انګاروسورسوزانه، پهاوپو کې؟
مخلوقات وتماشې ته راوتلي،

ډاریدلی هك‌حیران و.
دی‌ر ناته یی کتل‌په‌ترزمی کی.
په دی وخت کی بریښنا پرق کړو .
به دی‌لنډه‌روښنایی کی ،
خلکو ولیدوچه یو ه‌گرګه‌وه‌روانه‌په‌او بو کی،
یوشین‌مار کړی وړی وربانډی پروت و،
رنګارنګه، ټکی‌ټکی‌سرتر پا یه،
غاړه هسکه ‌هره خوا یی‌تماشه‌کړه .
پاس‌په سر یی یوسور ستوری‌ځلیدلو.

## گونگوسی دخلکومنځ کی‌شوی‌روانی دوی ویلی :

« ټول‌وا کمنه‌دمارانو، ښاپیری‌دسرسبزی وه
پاس په سریی دسروتاج و ،
یکی‌لال‌دبدخشان و، ځلیدلو .
لاړه‌لاړه،مونږ نه‌لاړه،
زمونږ سیمی‌نه‌بهرشوه.
دهغه دریاب په غاړه میشته‌خلك،
دمارانوسترواکمنی په‌هجرت‌ټول، ډیرخپه‌وو.
اودملك په آبادی په‌نیك‌مرغی کی،
داهجرت ورته ښکاره شوبدشګومه.
داهجرت وپه رښتیایو ه‌لو یه‌پیښه.
بیاوروستی‌نسلو تری‌جوړه‌دتاریخ‌لو یه‌مبدأ کړه:
ځکه ځکه په‌دی‌پیښی، ختمیدلو،
دانسان طلایی عصر،
اویوه نوی تاریخی دوره شروع‌شوه.

دمارانو ستروا کمنه ښاپيري چې، څنګه لاړه،
په هغې طوفاني شپه کې،
نوزمونږه قهرمان هم،
دژوندون دسيند له غاړې نه جداشو .
لکه هغه سيند چې نه راګرځيدای شي، نه په شا
دوباره تلای شي،
قهرمان هم بياونه کړای شوچې ستون شي،
دژوندون دچينې لورته.
قهرمان به بيا له ځان څخه تپوس کړو:
«— هغه ورکه نامعلومه هستي څه ده،
چې داهسې سرګردان ورپسې ګرځم،
په دښتو په بيابانونو؟ »
«يوه رڼاوه،
دچشمانو په افق کې ديوچاوه،
ښکاريدل به په هغه ناشناافق کې،
آبي رنګه دريابونه ناپاياب.
هغه څه شوه؟»
«يوه لمن وه،
شين بخنه، چې هرخرخ به يې خرخولو،
دآسمان ځلانده ستورې.
چيرته لاړه؟»
«يوه خنداوه،
چې دسروشوندوشفق يې، دژوندون صبح صادق و.
ولې چپ شوه؟
* * *
سربه يې کيښودپه زنګون

په‌خپل سوچ کې به ډوب ناست و.
خپل ګریوان ته به یې لاس کړو.
بیا به یې ووی:
«ـ زه‌شړلی فواری یمه له‌عشقه!
داغا یبه‌هستی څه ده؟
هغه عشق دی.
نامعلومه ورکه څه‌ده؟
هغه مینه.».
ور په یاد بیا هغه وخت شو،
چې څه شانې فراری شو.
الهی دمحبت په هغې ورځې، اغوستلې شین کمیس و
دی یـې ونیوه له لاسه.
بیا یې وښوده له ورایه، هلته دوری یوافق و نامعلومه.
نوی‌ـې ووې :
ـ زه چې ځواوس !
قهرمان زمونږ ه ډار شو.
له‌دی هسی نا آشنا مسافرت نه (۱)
نوی‌ې داشانتې جواب کړو:
ـ زه خو دلته میشته خوښ یم،
ددې ښار په‌دیوالو کې.
دښاریانو دچراغ په پلوشو کې (۲)

(۱) دعشق او مینې رښتینی سفر .

(۲) ځانځانی شعور درښتینې مینې‌څخه ډاریږي او خپل حقیقت په تیولنه‌کې، اودنورو په غلامۍ او فرمان برداری کې لټوي .

نویسی پام شو،
چی دهغوشهلا سترگو، آبی رنگه سمندر افق
تورتم شو .
په‌خنداکی سپین سباصبح کاذب شو ،
راخپره پری توره شپه شوه.
بیا په‌هغی سکلی ژبی داناشنابیان جاری شو:
«- په سوراورلمبه دښتونونه به تیرشی .
دتورتم مغارو تل‌ته‌به ورپریوزی .
خو بیا مانه شی‌موندلای .
هغه لاره چی بیاماته رارسیزی،
ډیره سخته ده بیشانه
نه‌یی سرشته نه‌یی پای شته،
بی‌منزل بی‌دمه ځایه .
کوم ساحل دسمندرچی زماځای‌دی.
داساحل به ستا دژوند مدام سراب وی،
پسی ځغلی به‌بی ځایه .
هر قدم‌چی ورنژدی‌ځی،
زرقدمه به تری وروسته پاتی کیزی .»
دسپرلی الهی داخبری کړلی .
اوآوازیی په‌تدریج لری وتلو :
«- بی له‌مابه، ستاباغونه، چمنونه‌ټول خزان‌شی
بی له مابه،
ستاسیندونه، رودخانی هم،
ورو وچیزی ځاځکی ځاځکی.
چی زه نه یم ،
یوه ترخه سړه سیلی به‌راپیدا شی.

دمرغانو شورماشور بەکړی خاموشه .
اویوه ورځ دورځ بەناځاپه ستاپام‌شی،
چی‌سرسبزه شنه دښتونه،
دغروشنی ښایسته‌لمنی ،
واړه وچ اغزن ډاگونه دی میری دی.
اوپه‌دی وچه صحراکی ،
یلك یوا زی ژوندی‌سری‌فقط ته‌یی،
خزنده‌یی، سمسره‌یی، په خاپوړو...».

* **

ورپه یادشو، چی‌دعشق آلهی‌دابیان‌کولو
اوآوازئی‌په ورووروو محوه کیدلو.
نودی پوه‌شو، چی‌داځل‌یو دوهم واروآخرینه
چی تری لاړه تل دپاره،
ستر واکمنه دمارانو، شین کمیسی‌ښاپیری‌دنو-
بهاربیا .
دازمونږ ستر قهرمان بیا،
په هغی‌هسکه مانۍ کی ،
داوږدو فکرونو تال‌کی زنگیدلو.
اویوازی یاك تنهائی ژوندکولو .
ځکه ځکه، گیر چاپیر دمړوښارو .
فقط دی پکی یوازی ژوندی سری.
ډیر کلونه تیریدل اوږدی مودی هم،
دروازی دښار تړلی کلکی پوری .
هیچانه کاوه گذر په دغه لوری.
هیڅوك نەنژدی کیدل دښارو خواته .
مودی ډیري شولی‌تیری.
فقط یووار، یوه‌ورځی، چی‌ماښام‌شوتوره‌خړه،
راپیدا شوه له‌کوم ځایه،
یوه ناشنازره بوډۍ وه ،

پته پته غلی غلی راروانه.

دښارلوی دروازې ته ودریدله.

خیره بده هم مرموزه، هیولاوه بد منظری،

تور کمیس توری پرتوګ توری زړوکـی،

دلوګی‌وو.

دښارلویـه دروازه شوله برسیره په خپل‌سر.

بوډۍ ننوته ښارته .

دهغی هسکی مانۍ پەلوري لاړه .

خوناشناشانتی بوډۍ وه .

بـی‌لەدې‌نەچی‌قدم‌پەمحکه کښیږدي،

دښایسته زینونه وختله پورته .

ـبی‌له دې نه چی کوم مکث یاتوقف کړی ،

دمرمر وجګو ستنونه شوه تیره.

دښایسته محلانده قصر دروازې ته ودریدله .

دی بوډۍ بیا،

نه زنځیر ددروازې وشرنګولو ،

نەیی ور و ټکو لو

وربرسیره به خپل سرشو.

بوډۍ لاړه شوه‌په قصر کی دننه.

خلك وایـی:

داناشنا زړه بوډۍ خو،

خیره بده هم مرموزه ،

پرښته دټرزموه.

چی یـی‌وکړو ملاقات له قهرمان سره.

نور باقی کیسه عجیبه پەدی شان ده.

دریم پړاو

# ددو زخ له در شل دیخوا

ښه په یادمی هغه وخت دی ،

چې دزړه ښکلی ماڼی‌می جوړوله ،

دژوندون دسینډ په غاړه .

ددې کار مقصد معلوم و .

دا خواری په آبادی کی ،

دازحمت په تهدابو نو ،

دادقت زیب او زینت ته ،

دغه ټول دچا دپاره تیاری وه ،

دیو چا په انتظار سمبالیدل و .

هیڅ دزړه خاوند دخپل زړه کور به نه دی

دزړګي خپله مانۍ کي نه اوسيږي .
کوربنه ربښتيا يو څوك وي ،
که رانشي ، رڼانه کړي مشعلونه .
نودزړه کوربيا تورتم خره تياره وي.
بيادزړه خاوندبهرځي، لټوی دزړه
خاونده ،
ورك به ورکي کوربني پسی له ځانه،
په دښتو په بيابانو کي، ګرځي پرزی.
اود زړه مترو کـه کـوروروورو
رنګيږي ، کنډواله شي .
هغه ښار چي خاموشه، ويرانه شوه، شو
هغه هم يووخت دزړه کوم ،
ښکلي کورو ، ښکلي مينه .
خودزړه خاوند غافل و، بې وقوفه .
دی پخپله پکي کښيناسته يوازی .
اوس راځي چي شوستانه خپلي کيسی ته :

* * *

## رب النوعه، الهه دعشق اوميني

وايـي وايـي :
دهغې ښکلې مانی (۱) کارچي شروع شو،
عواطفو ،هيجانونو، معماری کړه.

---

(۱) ربښتـيني انساني ذهن اوروح -
چي يوائې مينه او محبت ئې اصلي او تينګ
تهذاب دی .

معماران هسی ماهروو،

بسی مثاله بی‌همتاوو،

په ډیرشوق په ډیره مینه ئې خواری کړه.

تابه وی چی جوړوی شکلی معبدوی.

چی هغه شکلی مانۍ شوله آباده ،

نوزینی وی دمرمرودرخامو ،

پایی ستنی دلاجوردو ،

دبلوروفانوسونه‌مشعلونه، پکښې ځوړند

قیمتی پردی وریښمینی ،

بخملی اوریښمین قالینی ،

هم نقشونه نګارونه

په هرلوری تابلوګانی رنګا رنګ

په دیوالونو .

دغه ټوله‌تیاری‌وه،دیوچاپذیرائی‌وه.

دیوچادراتګ لارخاکوخارله .

انتظار هره شیبه په زیاتیدووه .

انتظاروو کانی بوتی په صحراکې،

ټول ګلان په چمنو کی ،

بلبلان توتیان باغوکی .

غرڅنی چی‌به‌دسیندغاړی ته راغلی

داوبو د څکودپاره ،

نوسرونه به یې کړه پورته ،

دافق یودوری ځای ته‌به یې کتلی،

چې به کله رارسیږي ،
ستروا کمنه ، رب النوعه ،الهه د
عشق اومینې .
راروانه په چپو دسمندر ورو ،
لکه الوځي وزمه دپسرلي تل .
شین کمیس دشنیلي بهٔئي په تن وي.
راروانه ،خرامانه، خپل معبدکې
به میشته شي .
قدمونه به دهرچا په لیمو زدي .
په پښو به ورنثار کړو ،
بیاهارونه، امیلونه،دصحرا وحشي
گلونو

* * *

**اژدها ته هرکلی :**
خوشیبې دانتظاراوږدې کیدلې .
انتها یې ورکیدله .
په ورو ورو درندی مودی شوی،
غرونه غرونه .
په آخر کښې ،
یوه ورځ وه، چې شولمر په پریوتلو،
هم هغه ناشناسړی بیا ،
جامې توري ، پتورآس سپور ،
په دښتونو کې له ورایه را ښکاره شو.
راروان و، راران و،

دښارلويې دروازې تهرانژدېشو .

بيا په ښارشوورډننه ،

دهغې هسکې ماڼۍ پهلوريلاړو .

مرمري زينونه پورته شوماڼۍ ته ،

سپورپه آس خپل .

پاس دلوی تالاربالکون تهراښکارهشو

دښارخلک يې مخاطب کړه .

داسیووې :

« ــ زه خو « زه » يم !

زه « ايگو » يم .

زه فاتح دلوی جنگونودجهان يم.

قهرمان يم بـې مثاله .

ستاسو ښارزماتابع دی .

تاسی ټول زما مريان ياست .

دې ماڼۍ کی به اوسيږم تل تر تله .

بـیزماله اجازی بـیله فرمانه ،

هيڅوك دلته قدم نشیايښودلای .»

پسله دی نه ،

په ښاريانوشولی بنـدی ، دروازی

دهغه قصر .

آزادی لاړه له باغه له چمنه .

معماران دعشق اوميني ،

شوراگيرپه قيداوبندکی ،

پهسختيو په خوارو کی .

په کاروکې بې هدفه، رنځوران شول.
مستبده فرمانونه ، امراونهي
بـې دليله فرماندار کړل .
خلک دومره شو بېزاره ،
چې ځوک لاړل فراري شول، ځوک
دمرګ پنجوته ورغلل تسليم شول.
باقي پاتې چرته پټ شول په غاروکې

* * *

فرماندار دې ته پام نه کړو
چې ښاروړو ورو دسکوت خواته
روان دی ،
په ورو ورو غلی کيدلو، چوپيدلو
ترڅو پاتې بل څوک نشول، بې له
هغه قهرمانه .
دی يوازې ژوندی سری ،
په چاموشه ښار کې .
نه ئې زمکې نه آسمان ته التفات کړو
قهرمان يوازې ځانته پام لرلو.
فقط ځانته ئې کتل .
بس راضي له خپله ځانه ،
د غرور دتکبر په مسند ناست و،
يک تنها هغې مانۍ کې .
هغه ښکلي تابلوګانې ، رنګا رنګه
تصويرونه ،

ښکارندوی دهغې سیمې دښکلا وو
منظری دغرو رغوونې ،
هم دخلکو دساده ژوندون صحنې وی
نورې نه لید ل کیدې په دیوالونو
دهغوی په ځای هرخواته ځوړندشوې
لوی بیشانه تصویرونه ، دفاتح ستر
او دهر تمثال دلاندې په جلی قلم لیکلی :
« سترایـګو ـ جهان پهلوان
« رب دی ورکړی ده ته عمر جاویدان »
په لرګو تیزو مرمرو ،
په پردولو ښوظروفونو په فرشونو ،
ثبت ونوم دقهرمان ستر ،
هم ځیره داژدها نقش .
هری خوا په دیوالونو ،
په تالار کی ، سالونو کی ، دهلیزو کی
لګیدلی لویـی لویې آئینی وی .
هرسهارهره غرمه هم ،
هرماښام هرما زیګر بیا ،
آئینی نه به ولاړو ، شامدام دی .
هی کتلی به ئی خپل ځانته ،
خپل سترګو خپل قامت ته .
دخپل ځان په تماشه به تل اخته و .
دآئینی له خوانه دوری تللای نشو .
ځکه ځکه ،

چی به یی نه لید وخپل ځان خپل ،

نو گومان به ور پیداشو،

چی خپل ځان تری نه ورك شوی،

ځان ئی نیست اونابود شوی .

ستر فاتح به وار خطاشو .

مضطرب به گرځیدلو ،لړزیدلو پریشانه

پدې شانی، دازمونږه قهرمان ستر،

لوی فاتح دټول جهان هم ،

بی خبره دآئینی دلوی خطره،

بی خبره دآئینی درمز اسراره ،

دآئینی په لور روان شو.

خبر نه و ، چی آئینه خو دروازه وه ، دروازه ددوزخونو ،

تیریدل دآئینی له درشل هاخوا،

کوزیدل وداوها مو جهنم ته .

* * *

## داوهامو جهنم (۱)

شپی اوورځی ، تیریدلی،

دازمونږه قهرمان ستر، وروورو گیرشو،

دلحظاتو په پټ دام کی .

دزمان په رنځ رنځور شو.

---

(۱) په خپل ځان مین شعور لومړی خپل شاوخوا بهر دنیا رنگوی او بیا پخپله په خپل ځان کی ځانته دوزخ جوړوي اوورو ورو پکي ننوځي.

درك احساس دزمانی ئی ،
دابهام په ډنډ کی ډوب شو.
خبر نه و، چی څه مهال د کومی شپی دی،
کومه ورځ ده، کومه میاشت ده، کوم موسم دی،
کوم کلونه دی راغلی، کوم فصلونه دی تیر شوی؟
خو داسوال ورته بی مورده ښکاریدلو .

* * *

فکر ئی کړلو:
چی راتلونکی ورځی شپی میاشتی کلونه ،
باید شمیر شی.
خو داهسی شمیرنیول هم ورته گران و .
کوم مفهوم کومه معنی ئی نه لرله.
دومره پوه و ،
چی یواوزدگران سفر په مخکی پروت دی.
اندازه دلاری نه وه ورمعلومه .
نه کوم میچ نه کوم معیار ئی درلودلو.

* ÷ *

دالحظه به سمندر شو،
ناپایابه .
داشیبه به یودریاب شو،
نامحدوده ،
ساحلونه ناپیدا غاړی یی ورکی .
بی آغازه بی انجامه، هرلحظه هره شیبه وه
مات نسکور رو، ورته جام د زمانی پروت.

هم‌قالب دشپو اوورځوتش‌خالی‌و.
نه‌ماضی نه‌مستقبل و ، نه ئی شمار نه ئې حساب و .
هر لحظه ابدیت و ، ځوړندځوړند په‌خلا کی ،
هر لحظه هره‌شیبــه هسی آغــازو ،
بی انجامه، بی پایانه .

* * *

په‌دی هسی ابدی اوږدوشیبو کی
قهرمان به سوچ وهلو :
«- په نړی کی یو وخت داسی خلک هم ،
چی آرزو ئی آخرینه ، ژوندکول ؤ ترا بده
هم ارمان دارمانونو ، وله‌دوی سره ،
چی څښتن دیوه روح وی جاودانه
که دوی پوه وای ،
چی دیوې شیبی هستی څومره سختی ده
څه خواری ده ،
چی دایوه لحظه دریاب دی ناپایابه
څوبیدل دی ، څوبیدل بې انتهادي ،
نو هیڅکله به ئی ارمان بیا کړی نه وای ،
چی نصیب ئی شی ژوندون جاودانی
یادننه ورته ناسته وی په تن کی ،
ابدی روح .»

قهرمان وپــه آخر کی پوهیدلی
چی غورځنګ په یوه شیبه کی،
ګران سفر دی بی انجامه
په ناشنا پردي وطن کی ،
په تور تمو تر زمو کی نامعلومه ..

* * *

قهرمان ورو ورو روان و،
کوڅیده قدم قدم دی ،
دتجرید او تنهائی ژوری کندی ،
ژور تل ته .

* * *

سره له دی هم، یو ملګری و رسره و
لا بالکل یو ازې نه و.
یو احساس ئی ملګر تیا کړه .
یو ناشناو یجاړ احساس یې دپریشانی و،
دا احساس هسی احساس و،
چی به کله نری بادشو،
چلیده به، دده ذهن او ددماغ په
کنډوالو کی .
هیجانو نه عواطف به شوی کنګلی
بیا به کله طوفانی شو ،
سختی دوړی، ګرداو خاوری به شوی پورته،
دزړه ذهن منظرې به شولی پټی .
بله ورځ چی، دا طوفان سخت چلیدلو،

ژوند هستی یې لړزوله،
ناڅاپي ورته ښکاره شو، ددې هسې پریشانـــی
علت سبب لوی.
ده گومان کړلو یووختی،
چې په ژوند اوپه هستی کی ،
یو لوی دردخو، تیر یدل دزمانی دی.
اوس ئې پام شو چې عظیم درد،
دزمانی تیر یدل نه دی.
هیبتنا که وحشتنا که درد خو بل دی:
دریدل دزمانی دی.
کوم تشویش چې ده لرلوهغه داو:
چې به رانشی سهار بیا،
نه هغه بادسبا نور،
چې به پاخیده له هسکو سپین کنډونو،
خپریدلو به دغرونو په لمنو، په دروکی.
دا استازی دسباو،
دسبادراتگ زیری ورسره و.
مرغې به یـــی ویښولې په باغوکی،
دغفلت له درانه خوبه.
نه به بیا دیوی اوزدی شپې په آخر کی ،
دشفق لمنه سپینه شی رناشـــی،
دیوی نوی ورځ پیغام به ژوند ته راوړی.
نه به بیاراشی تودی ورځې داوړی؛
چې غرمې به تیریدلی ،

دچنار دسیوری لاندی،خوړ پهغاړه .
چی‌نری نری‌اوبه‌په کاړختلی،
دایمی شراربه‌ئــی خوب خوب راوړلو.
نوربه نه وی‌هغه لمرچی پریوتلو،
دشفق‌لمن به‌ئی سره کړه.
نه‌هغه‌خوازه‌دردونه،دماښام‌په‌نیم‌تورتم‌نیمه‌رڼا کی

* * *

هغه څرخ دزمانی چی‌گرځیدلو،
دانسان دټول دردنو درمانگرو :
کوچنی‌توب وپه ژوندون کــی،
دورانونه دځوانی‌بیادزړښت وو،
ټول ووپای ته رسیدلــی.
دغه څرخ دزمانی ودریدلی،
درمانگردټول دردونوپوخ طبیب دزمانــی و،
چرته تللی.
مهربانه پرستاره دسباهم،
سپینه خوله سپین مړوندو نه،
نوره نه‌راتله دده دپالنګ سرته،
نوره‌ئی نه‌کړله دده پرستاری.

* * *

داناشناشانتی سفرو،ده کولو.
یو بیابان به‌وروپه یادشو ،
چی‌دخړوبو تږومنځ کــی،
نری لارکږه‌وږه‌وه‌تللی‌تللی،دافق‌په‌لوری‌ورکه

نو به‌یې ځانته داسې ووې:

«ـ ولې نه‌شوم په‌هغې باریکه‌لار باندې روان زه؟

په یقین چې، رسیدله دغه لاره،

کوم ساحل ته، پټ په‌لړو په غبار کې.

ددریاب په‌غاړه بو تو کې ولاړه،

منتظره یوه کښتی ده،

ما به‌پوری باسی هاخوا،

دژوندون سمندر غاړې کې به‌کوزشم.»

* * *

خوددې ناشنا سفر په‌هر قدم کې ،

ده احساس کړوچې لانور په‌زمکه نښلې.

چې کتل یې ـ یې خپل وجود ته،

نو لیدل ئې ـ ي،

چې تنه‌ئې نیمه‌لاندې، اونښتله،

جوړیدله ترې دونې کلـکه ستنه.

ښنې ځیلې شوې ریښې شوې،

ښخیدې هرخوا په زمـکه.

پاسنۍ نیمه تنه کې لاژوندون و،

سراولاس لکه ښاخونه څانګې څانګې،

ښوریدل به، کږیدل به، سمیدل به،

دتشویش او اضطراب باداو طوفان کې.

* * *

بیا نو دې هستې جامدې،

تماشه دیوعالم کړه، چې ولاړ ساکن ثابت و،

معلق په زمانې کې تر ابده

قهرمان په‌تمه ناست و.
داصحنه ورته تیاره ښکاریدله.
ده‌وې‌رابه شي صحنې ته، اکتوران ممثلان اوس،
کړې تمثیل به، په‌لرغونې یونانې سبک،
کومه لویه فاجعه دانسانانو،
کومه‌لویه‌تراژیدی دمرګ‌اوژوند دوی.

* * *

کله کله به‌ئې پام شوشاوخواته،
دنیاګې وه‌نه‌روښانه نه تاریـکه.
عجیبه تر تهو لو داوه،
سیورې نه‌و، هیڅ شي سیورې نه لرلو.
بله ورځې، قهرمان هر خوا کتلې،
وې نه‌لیدوخپل سیورې.
ده باور کولای نشو، چــې خپل
سیورې یې ورك کړې.
په دې پیښه‌دې بیشانه مضطرب شو.
نیم وجودیې و، ورك‌شوی نابودشوی.
دغه‌سیورې‌خو دده وفادار دوست و.
دژوندون په‌ټیټ‌اوپاس کې ئې ملګرې.
داملګرې وفادارو ترې نه تللې،
نویې وویلې خپل ځانته:
«ــ اوس پکاردی چې‌زه لاړشم
اوهرومرو پیدا کړمه خپل سیورې.
ګونـدې وی چې په دی لټه کې
مونده کړم،

دخپل ورك سمندر غاړی . »
خو معلومه ورته‌نه وه ،
چی په کوم وخت تری‌نه ورك شو
دغه سیوری ؟
یو له بله‌خو مره‌تللی دوری‌دوری؟
بیائی وکتل هر خوانویی‌باورشو،
چی‌دالته به‌بی ځای وی .
ځکه‌ده په‌ځان کی نه ایده ، نه‌کوم شوق‌دلته‌ولو
نه دهغې اراده هم .
په دی وخت‌کی ورپیداشوه ،
یوتازه شکك اوتردیدبل .
داروونکی‌اضطراب شولوراپورته.
داپوښتنه یی له ځان څخه‌کوله :
« ـــ گوندې نه چی،
زه پخپله یم یو سیوری ،
هسی‌سیوری چی‌اصلی‌وجودیی‌ورك‌دی؟
یایووهم داوهامو ،
جداشوی دکوم خیال نه ،
پریوتلی چرته دوری :
یا یوفکریم بی ربطه مجردکوم،
جلاشوی ، پریکړ شوی ،دافکارو
له ژوندونه ؟ »
چی به‌یی‌وکتلی‌ځانته ،
چی‌نه‌ذوق نه علاقه دتجسس وه ،
نه کوم سوزو ،نه‌کوم درد دده په
زړه‌کی ،

نه آرزو پاتی نه هیله ،
~~تولی شیبی وی مرموزی ،~~
نو په ځان بهٔ يې باورشو ،
چې دی بل کوم څه شی نه دی ،
فقط و هم دی یو وهم،
فقط سیوری دی یو سیوری .

* * *

ده تهٔ دې وخت کی یو بل احساس پیدا شو .
دا احساس ده ته آشنا وله پخوانه .
دامید یو ضعیفه رنگینی وه ،
چې په دی بیر نگځ جهان کی ځلیدله .
دا احساس و یو احساس دسختی تندی ،
هغه تنده ، چې دزمکی ټول رودونه ،
ټول سیندونه ،
ورته ښکاری کوچنی څاڅکی .
داخو تنده دهستی وه .
داخو تنده دژوندون وه .
نو يې ځـانته داسی ووی :
« -- معلومیږی وهم نه یم .
ځکه ځکه ،
وهم هیڅکله احساس دتندی نه کړی .
سیوری نه یم .
ځکه سیوری نه ودریږی ،
ریښی نـه کـړی په صحرا کی . »

* * *

دا زمونږه قهرمان بهٔ ،
زنگیده دفکر تال کی ،

اوخپل ځانته به یې داسې ویل کړل:

«- په بیشانه اوږده لاریم،
رسیدلی تر دې ځایه.
هم می کړي اوږدې اوږدې مزلې په صحرا کې.
خولا او س هم نه ښکاریږي،
دمقصد پړاوله ورایه.
«- دلته ناست اوس،
منتظریم، تش لاسونه.
منلې منلې په دې دښت کې،
تپوسونه، تجسس دوړ کې لارې،
باید ختم شي په دې تورتم تیاره کې»
«نه په سر کې اندیښنه د کوم خپګان شته.
نه په زړه کې جذبه دخوشالۍ هم.
نه کوم جوش تر ی نه داو ښکوراجګیږي
نه خندا پکې خو تکیږي.
نه بېتابه په ګرمي د کومې هیلې،
نه سوړ باددنا امیدۍ لړزوي هم.
یوه مرموزه شانتې تنده مې ملګرې،
په صحرا دبېدردې کې:
مکدر منتظر ناست یم.
«- معلومیږي،
هر قدم چې یمه تللې، د مقصد په
لورې دورې؛
په پړاو پړاویم لیرې غورځیدلې.
ګوندې نه چې اصلي لارمې خطا کړې؟
په بې لارویم راغلې؟

دااوږدي اوږدي مزلي تهول بې ځايه؟»
ملغلرې له دريابه راتهوليږي .
بيا په مزي پييل کيږي، وصل کيږي
بيا اميل ترې نه جوړيږي .
هم کړې وړې داوسپنې حلقې خو،
راغونډيږي، زنځيرونه ترې جوړيږي،
دا شيبې د زمانې هم،
دژوندون په تار وصليږي، يوله بله.
نو اميل شي، ښه سوغات دعشق اومينې
دبهار دالهې دغاړې هارشي .
يا زنځيرشي، ترپښو تاو شي .
هره ورځ نوې کړۍ شي، پرې ورزياته.
دا کړۍ نوې د ورځو،
زنځير لږ څه اوږدوينه .
يو قدم نيم، لږ څه وړاندې، بيا ممکن شي .
نو انسان ته ورپيدا تصورشي،
چې انسان آزاد مختار دی،
زغايدی شي په هر لوري، نامحدوده .

* * *

قهرمان له ځان سره داسې سوچ وو هلو:
«ـ جوړولو مې اميل دعشق اومينې .
خو تاراوم و، وشکيدلو، .
ملغلرې رانه توی شو لې دانې دانې په ډاګ کې.

وروستنی دانی په‌لاس کی راته‌پاتی.

«- اوس په خاورو په اغـزو کی

د دی دښتی،

بیا میندل د ملغلرو آسان نه دي .

الهه دنوبهار که اوس غز و کړي،

نه تحفه شته، نه هدیه شته،

تش لاسونه به ورځمه .

«- دازنځیر دزمانی هم‌شوکیدلی .

کړۍ هرې‌خوا پرتی دی .

هره‌لحظه یوه کړۍ ده، مستقله .

زه پرې بندیم، پری‌تړلی .

خوزنځیرهسی زنځیردی،

چی‌نه‌ماوصل کوي‌دکوم‌جهان سره

اونه ماتړي په بند دکوم دلبر . »

* * *

قهرمان دآزادۍ معناهم داوه :

آزادۍ د زمانی له قیداوبسته.

آزادۍ دشپواوورځوله‌زنځیره.

آزادۍ د انسانانو له تړونـه .

مگرنه‌پوهیدزموږلوی قهرمان‌ستر.

چی په هغه بیابان کی .

دی دچاله خوامحکوم‌په‌آزادۍ و؟

نن زما بیری لاهو شوه په دریاب کی
لا به کله دا لاهو بیری په شط شـــی
خوشال ختټك

ځلورم پړاو

# د دوزخ له درشل ها خوا

ددی ستر قهرمان ژوند کی،
له هر وخته نا قلاره نا آرامه وخت دخوب و.
ځکه ځکه،

په تور تم کی به ده ځان لیدلی نشو .
ور کیده تری نه په خوب کی ،
لوی احساس دځانځانی خپل .
نودا ځکه، هر گړی چی به ور تللو:
نیمه شپه دخوب بستر ته،

کوو

نوگومان به ئی کرلو چی،

دعدم په لور روان دی ،

دنیستی ډنډ ته وردانګي .

له دی وجهی،

ډاریدوله بیدیدونه ،

چراغونه به ئی نه وژل هیڅکله،

بلیدل به شپی او ورځی .

کله کله هم چی خوب به غلبه کړه ،

نو لیدل به ئی خوبونه پریشانه .

درانده سیوری داشباحو بلاگانو ،

به راتلل له هری خوانه.

کښېناستل به په ده باندی .

یو کارغه به راپیدا شو ،

تورښانگونه به خپاره دده په مخ شول.

یو ناشنا دښمن به راغی .

دی به ئی خملاوه په زمکه سمدستی ،

پولادی نیزه به ئی خپله، بیادده په زړه کښه. منظور

نوراو یښ به قهرمان شو .

بو گنیده به لړزیده به ،

دخولو په ډنډ کی ډوب و .

* * *

چی دی شانتی یوه شپه دشپو سباشوه ،

په دی هسی بی خوبی پر یشانی کی
قهرمان‌له ځانه ډیرزیات نــا راضی و .
دلو مړی کرت دپاره یــی ونه‌کتل آئینو ته .
پام ئی و کړوشاو خواته ،دښایسته‌مانۍ‌چاپیرته،
چــی لیــدل ئــی ،
ښار کورونــه وویرانــه پــه هــر لوری
ویرانــی وی ، خرابــی وی .
او دده ښایسته مانۍ هم
یوه بــی رنــګه، بــی زینته آبـادی وه
دریدلی په بید یاکی‌وچه ښره
دیوالو نویــې چاو دونه خطیر کړی .
تیزی هرخوا رغړیدلی ، په اغزوغنو پټ شوی

* * *

نوزمونږه قهرمان ستر، آخرپوه **شو** .
چی‌دمرګ په خوب بیده دی‌دغه ښار اوس
رښتینی‌فرمانروا هلته سکوت دی.
دی یواځی ژوندی سری هلته پاتــی .
پس لــه دی نــه
قهرمان‌ته‌تفاوت‌دشپی‌اوورځی‌کمیدلو،ورکیدلو.
هغه توری بلاګانــی ، درانده سیوری ،
چی یواځی به دشپی په خوب لیدل ده ،
هغه ډول را پاریدلی په بل شان وو
شپه او ورځی ښوریدل اوس ،
هــری لوری ، هری خواته ،

په هغې هسکې مانۍ کې وردننه
دلته هلته په هر کنج کې،
دراندہ سیوری پريوتل اوس .
قهرمان به هم له ليرې هم نژدې نه،
اوريدل ناشنا غږونه
نو باور به ئې کولو ،
چې څوك هلته يو له بله سره پوسيږي ،
ګونګوسی کړی ، ده ته بدوايي،
د سيسې کړی تو طئ دده پرضد کړی ،
کله کله به يې آواز دقد مونو بيا ترغوږ شو،
په اوږ دواوږ دو تور تمودهليزو کې .
دا آواز به، زياتيدلو،په ورو ورو نژدې کيدلو.
بيا به يودم ودريدلو .
هره خوابه چوپيائي شوه .
دروازې به چغيدې بيرته کيدې پورې کيدلې.
چراغونو به مرموزه رڼا کړله ،
روښنائي به کميدله کميدله .
بيابه پاس دچت دلاندې، يو آواز شولو ناڅاپه
ده ګومان کړو،ګوندې هلته ،
نا مرې يو مرغۍ ده شورو ووزر ښانګونه.

* * *

**دوزخيان ياغي ياغي(۱)**

کله کله به ناڅاپه ،
دمانۍ په ژورتل کې ،

(۱)دژوندقدرتونه . طبيعي غريزي عواطف او هيجانونه

کوز په زمکه کی دننه،
هیبتنا که هنگامه شوه.
هم په دغه شور ماشور کی ،
قهرمان به‌اروېدلو،شرنگهاردز نځیرونو .
اوریدو به قهرمان بیا؛
له کوم ځایه دوری دوری ،
غرهار دطوفانونو ، هیبتناکه
کوم جاکړورا روان په بیړه بیړه ،
د ډکې له قهره‌له غضبه .
ښکاریده چی :
کوم‌یونوی پسرلی چرته روان و.
دی استاځی ئی دراتلو خبررا وړو.
قهرمان احساس کولو ،
چی نه ده‌ته داپیغام را استوی څوك ،
اونه دغه نوبهار چی را روان دی ،
نـاآشنادی ، شور ماشور کړی
دادده پسرلی نـه دی .
ځکه ځکه ،
دجا کړ په غرهارا اوشور اوزوز کی
یو نا شنا شانتی آواز ورته کیده هم .
دا آواز وډکې له‌قهره‌له غضبه ،
قهرمان ته گواښیدلو .
لومړی ځل و ،
چی داهسی غزپه ده بانلدی کیدلو .

ځکه ده په خپل ژوند ون کی ،
غیر له خپل غضبناک غږه ،
اورید لی کله نــه و،
دتهدید او گواښ آواز هیڅ .
دې آوازخو ، په ظاهر کی نرمی کړله ،
په باطن کی ډک له قهره، له غضبه .

* * *

په هغه جا کړطوفان کی ،
دا نــاشنا آواز راجګ شو ،
قهرمان ته ئی ویلی:
«ـ د ژوند ون له سر چینی نه دې کړم دوری ،
بیا دی بوتلم په بـی لاروشړو لارو،سرگردانه!
«ستا یادیږی؟هغه وخت چی دروغ زړه مینی ته راغلی،
هر کلی مودرته ووې ،
په پراخ تندی مونږ .
کلی گانی د کوټو د دروازو ، درته تسلیم شوی
تاته مونږ دروسپارلو،دهستی وجوداختیار ټول.
«تا کړو ځانته یونوم غوره:
تاوی«زه»یم،نوم می«زه»دی.»
«مونږ»او«تاسو»یوه پرده ده .
دا پرده مو کړله ورکه.
مونږه ټولوستا په«زه» کی ، کړو
ځان محوه .
تا ویلی:

ـ زه مرکز د ټول جهان یم!

مونږ باور کړه.

تابه ویلـــی:

ـ زه واکداره هم دزمکی د آسمان یم!

مونږ منله.

تابه ویلی:

ـ زه خوور یمه د هرشانتی ستاینی

هم لمانځنی!

مونږ ه ستا په پرستش شو ه او سجدی مو در ته و کری

«داستوګنی په شروع کی،

تازیات پام کړود کاله زیب اوزینت ته.

تاځان هیڅ باخبر نه کړو،

له ژورو تهدا بونو، زمکی لاندی دهلیزونو.

دمانۍ پورتنی پوړ دې کـړلوغوره،

د استوګنی، ژوند دپاره.

التفات د کانه کولو،

هغو پټو دهلیزو تورتم کنجونه.

مودې ډیری شولی تیری،

ترخو مونږ و پوهیدلو؛

چی تا دارلرو بیشانه، له تورتم له ترموږ نه.

«دیوالونه سرتر پایه،

تاکره پټ په آئینو ټول.

بیاد ځان په تماشه شوی، شامدام بټه

«داستوگنی لەاولە»

ته خود سره وی خود رایه .

چی هرڅوکاونه میاشتی تیریدلی ،

ستاطبیعی استبداد ظلم ،

بیالا نورهم زیاتیدلو.

ستاپه کار کی، هیچاخونشو ویلای.

هم ناڅیزه انتقاد نشو کیدلای .

تاکړی هیلی ،آرزوگانی،وخت بیو خته.

نه دی صبر حوصله وه،

خپل مرام تەرسیدل تا، بیاغوښتل تل

په هر آن په هغه آن هم.

«غریزی اوعاطفی اوهیجانونه ،

وودی هیواد لرغونی اوسیدونکی

بی پروا به گرځیدل آزاد سرمسته

پەځوانی او په ښکلا کـــی.

تل بهارو.

تاکړه دغه اوسیدونکی،لەځان دوری

یاپابند تاپەقیدو پەدسپلین کړل

تاغوښتل چی ،

دوی بەستاخدمتگاران شی ،

ستافرمان ته به سر کیږدی،

نه بەشور کړی نه مستی کړی.

تاو نه کړای شوچی دوی خپل بندگان کړی .

تا دوی استول زندان ته

زمکی لاندی.

زندانی دتل دپاره ابدی شول

تامونده کړه ، فقط دوه شان

غلامان بس :

یو وعقل ، بل و فکر.

دواړه ستامشاورین شول .

بیا دوی واخسته په غاړه، ستا په امر،

دزندان پهره داری هم .

رشتیا هم په عقل او فکر ، ستار ښتنی مریان وو ، بیځي

دزندان پهره داران وو، جابران وو.

خوچی کله به ئی ستامشاوری کړه،

ریا کار متملقه چاپلوس وو

مداحی به ئی کوله .

نوستا یل به دوی وهمونه ،

ستادزور دعظمت داوچتوالی .

جوړول به ، عقل او فکر ،

ستا او هموته ، د ایلو نه ، دمنطقی ظاهر علمی ډیر ،

«ـ زما دوست زما ملگری ! ای زما «زه» !

تاله ژوند څخه آخر جوړ سر نوشت کړو .

دهغه وخت له شروع نه ،

چی فرمان دې کړو جاری خپل ،

دژوندون په قلمرو کی ،

تایوه لار کړله تثبیته له پخوانه ،

د هغه لاروو د جنگونو ، فتوحات افتخار اتو

«مونږ دا اوس چې ،
په دې لارې یوراغلي ،
دې پړاوته رسیدلي ،
داخوځکه ،چې دالاربله خوانه تله .
چاره نه وه . مجبوریت و .
دې منزل ته رسیدل زمونږ حتمي و.
په صحرا کې ، په بیدبان کــې ،
مندې تر ړې ،زغلیدل سرگردانې تول ،
نه دسهوې نتیجه وه ،
نه کوم بله غلطي نه اشتباه وه ،
نه ناوړه تصادف و ،
دادهغه پلان حاصل دی ،
چې تاژوندکــې عملي کړو .
«دروازې دې کړلې پورې، په ځان بادې ،
بیادې ووې :
ـ که څوك نه کړي پیروي زماله شخصه ،
هغه څوك زما غلیم زمادښمن دی ،
که څوك نه غواړي چې وکړي ،
نوکرې اوغلامې په اخلاص ماته ،
نو هغه څوك له ماسره نــه دی ،
زمانه دی .
« مونږ گومان کړو ،
چې داهسې بې پرواغتې خبرې ،
داستا هسې سپك نظر انسانیت ته
دلالت ستا په نبوغ ستا په عظمت کړي .

چی راستون په شوی دژوندهری جگړی ته ،
نو به تاداسی ویلی :
– ټول پلونه می خراب کړل .
هم می وسیزلی ټولی بیړی ګانی ،
هم می لاری ټولی پریکړی .
ددښمن دیرغل لاره می کړه بنده .
« مونږ به ویلی :
ته رښتیا اوی مدبر یی ، بی جوړی سپه سالار یی .
« مونږه نه وو پوهیدلی :
تاچی کړله دښمنی دکوم غلیم سره ،
په واقع کی ، تاخپل ځان سره دښمنی کړه .
که دی ماتی چاته ور کړه ،
په جګړو کـــی دژوندون تا ،
په واقع کـــی ، داشکست ستادخپل
ځان و .
که تا وتړلی لاری ، په یرغل دیرغلګرو ،
په دی کار لومړی تا خپل ځان ،
قلابند کړو ، زنداني کړو .
« په ژوندون کـــی ،
تا یوه بله ګناه و کړه ، ډیره لویه :
زندانی دی جذبی دآزادی کړی .
قدرتونه ، دمستی دانقلاب دی ،
کړه بندی دزمکی لاندی .
« خو افسوس چی ،
قدرتونه دتعبیر دآبادی اوس ،

قدرتونه دتخریب دخرابی دی .
ځکه ډیر کلونه کیږی ،
دوی پراته‌دی، په‌تورتم بندیخانوکی،
په زنځیر باندی تړلی
پیدا کړی دوی بل‌شان‌نوی‌خیری دی ·
ارواګانی‌ددوزخ‌تری‌جوړی‌شوی.
کوم قدرت‌چی‌نوم‌ئی «مینه‌محبت»و،
اوس‌ئی‌نوم د« تنفر»دی‌غوره کړی.
پرونی قدرت د « عشق‌دجزباتو »،
نن‌هغه‌ځانته«روحی اضطراب»وایی.
دژوندون یوه غریزه وه ،
پرښته وه، شین کمیسی ،
اوس‌هغه‌یوه«پرښته دمرګ دډار»ده
تور کمیس ئی اغوستلی .
عقل‌اوفکر، غلامی‌ستاډیره کړی
ستارکاب کــی‌زغلیدلی دی‌بیشانه،
توان قدرت ورپاتــی نه دی.
نورپهره کولای‌نشی دبندیانو ... »

* * *

په دی شانی ،
دا آوازچی‌غزیدلوپه جاکړکــی،
ورو ورو چوپ شو .
خودزمکی‌نه‌دلاندی‌دمانی‌په‌ژورتل کی

يوه عظيمه هنگامه وه .
شور ماشور پورته کيدلو .
قهرمان په حساب پوه شو،
چې داهرڅه ترتيبات و ،
ديوچاراتلو دپاره
تياري وه ديوچاپلړ پرائي‌وه.
دوزخيانو هلته جشن وجوړ کړی
منتظروو ، چې به کله را رسيږي ،
پرښته دتر ږمواوس .

* * *

دازمونږه پهلوان سترښه آگاه شو ،
وپـــوهيد چې :
هغه واړه ارواگاني ،دوزخياني،
قدرتونه دعشق ميني آزادی تږول،
زنداني په جيلخانو کـــی ؛
ياغي شوي انقلاب کړی.
منتظردي ترږمی ته :
چې بيالاړشی ،
کړي خراب داورلمبو کـــی قلاگاني
حصارونه ،
سيلا بونه هم‌روان کړی، په دشتونو
غرو رغونو .
هم په خاورو کـــی‌اوار کړی،
معبدنه مانۍ گاني ،
دفنا په باد برباد کړی ،لوړ برجونه
ديوالو نه .

**پرښته د آرږمو :**

بله ورځي ، دازمونږه قهرمان ستر ،

شوراپورته‌له درانده خوبه ناوخته.

د همیش پشان ئي وکتل ځان ته په آئینی کـــی.

خوهرڅومره چې په ځیرشو آئینی ته،

یوه څیره ناشناناشناورته ښکاره شوه .

ده ونه پیژاند ځان هیڅ .

ځکه ځکه ،

دده عکس په آئینه کی ډیر مغشوش و .

او عجبه خولا داوه :

په آئینی کی داڅیره ورووړو روانه‌ورکیدله .

* * *

هم په‌دی ورځ،چې‌ماښام‌شو توره خره ،

را پیدا شوه له‌کوم ځایه ،

راروانه ، پټه پټه ، غلی غلی ،

یوه ناشنازره بوډی وه .

دښارلوی دروازی ته ودریدله .

څیره بده ، هم‌مرموزه ،

هیولاوه بد منظری ،

تور کمیس تورئی پرتوګ تورئی زړو کی‌د لو ګی وو .

دښارلویه دروازه شوله برسیره ،

په خپل سرله خپل ځانه .

بوډۍ ننوته ښارته .

دهغې‌هسکې مانۍ په‌لوری لاړه .

خوناشاشانتی بوډی وه
بی له دی نه چی قدم په زمکه کښیږدی ،
دښایسته زینونه وختله پورته .
بی له دی نه چی کوم مکث یاتوقف کړی ،
دمرمروجګوستنونه شوه تیره .
ښایسته ځلانده قصر دروازی ته ودریدله .
دی بوډی بیا ،
نه زنځیر ددروازی وشرنګولو ،
نه ئی وروټکولو ،
وربرسیره په خپل سر شوه .
بوډی لاړه ، شوه په قصرکـــی دننه .
داناشنازړه بوډی خو ،
خیره بده هم‌مرموزه
ستروا کمنه پرښته دترزموه .
داراغلی وه دستروا کمن دیدار ته .
خولااوس هم ،
تیارنه وملاقات ته ، قهرمان ستر . (۱)
پرښته وه ورروانه ، ورنژدی شوه .
قهرمان سترئی له لاسه ونیولو .
بیا مسکی کیدله .
خیره بده هم مرموزه .
بیائی وکړواشارت ناشنا افق ته ،

(۱) – په خپل ځان مین شعور یوازی دمرګ په مقابل کی خپل تریخ حقیقت ته متوجه کیږی – خو ناوخته دی . او حتی داتوجه هم صحیح نه دی .

هلته دوری نامعلومه .

بیاڅی ووې قهرمان ته :

ـ ځه چه ځواوس !

قهرمان زموږه دار شو ،

له کومی هسی نا آشنا مسافرت نه .

نوئی داشانتی جواب کړو :

ـ زه خو دلته میشته خوښ یم .

ددی ښار په دیوالو کی ،

دښاریانو دچراغ په پلوشو کی (۱) .

ستړوا کمنی پرښتی ورته په نرمه ژبه ووې :

ـ خبرنه ئی ؟ چی اوس دلته خو څوك نشته ،

نه کوم ښاریان نه چراغونه !

قهرمان په زاری ووې :

ـ آخر زه خو ، لاتر اوسه ،

په خپل ژوند پوه شوی نه یم !

نه لذت ماکوم میندلی ! نه لیدلی خوشالی ما !

لاتر ننه ، لاتراوسه ،

حتی نه دی پیدا کړی ، ماخپل ځان هم .

لږ فرصت راکړه چی لاړشم ،

یوځل شاته ،

تیروشوو پړاووته بیرته ستون شم .

خپله ورکه ، نامعلومه ، خو پیدا کړم !

---

(۱) په خپل ځان مُعیّن شعور تولنی او په تولنه کی فرمانبردارته اړوی دا برخه دتیرشوی پړاو په بله پرده او سازکی انعکاس دی هلته دمینی دالهی داخبری کوی او اوس ئی دمرگ فرشته کوی .

بیابه ځم درسره هرځای ته چې تللی .

دازړه بوډۍ موسکې شوه ، په خنداشوه.

بیائې ووی :

ــ خبر نه ئې ؟

اوس خووخت ناوخته شوی دی بیشانه.

په شاتګګ هم ، بې فایدی دی، ستا دپاره .

ځکه ته به بیا تکرار کړې ،

کړی کړی ګناهونه .

بیا به درومې ، زغلې زغلې ،

ځانځانې پسې دځان خپل .

هم په دې سراب پسې به بیاروان شې .

په آخر کې ، یوځل بیابه

ته راورسیږې دلته ، دې صحراته .

قهرمان په زاری ووی :

ــ ته غوږ کښیږده ! ...

زه خواورم یوآوازله لیرې ځایه .

زه یقین لرم چې هلته په بیدیا کې ،

ماڅوك غواړي، ماته غږ کړی .

څوك زما په انتظار دی .

اجازت راکړه چې ورشم .

تپوس وکړم . چې څه وایي؟

زه باور کړم کوم مهم پیغام لری زمادپاره .

بوډۍ بیاوموسکیدله ، په خنداشوه .

نوئې ووې :

ـ داخوزه‌یم، چی راوړی می پیغام دی، ستادپاره.
یو پیغام دپیغامونو !
ته پخپله‌ښه پوهیږی ،
چی په سراسرنړی کــی ،
اوس څوك نشته غیرله مانه ،
چی آواز دربانده وکړی ،
انتظار وی ستا راتګ ته ،
یا پیغام کوم درته راوړی .
کوم آواز
چی، اوس ته راوړی ، اروی
بل څه نه دی ،
د خزان بــی رحمه باد دی،
زمادوست زما ملــګری،
چی را الوزی په غنو په اغزوکی .
قهرمان یوځلی بیا پیل په زاری کړو :
ـ آخردومره، خوفرصت لږشانتی راکړه ،
چی یوځلی، د دریاب غاړی ته لاړشم .
یووار بیا تماشه وکړم،
دآسمان دآبــی رنګه کنارو زه .
دسیند پوری غاړه تیرشم دوری دوری .
داخپل ځان لږشانتی هیر کړم .
څوشیبــی لنډی خو وکړمه ژوندون زه !
لــکه څوك چی هڅه کاندی،
کوم بدخویه، ناقلا ر کوچنی په خوب باندې بیده کړي ،

په دې شانتي، ډابوډی هم ،
مهربانه وه بیشانه .

په پسته ژبه لــگیاوه، نرمه نرمه،
په ورو ورو ئې ورته ووی :
ـ ای زما د زړه واکمنه !

هرڅه تیر دی .

اوس خو ډیر ناوخته شوی دی ناوخته .

د زړه سره ! ستا یادیږي ؟

په هرلارچی تاگذر کړو،

بل معبر دی ورانولو .

په هرسنید چی تیریدلی،

نوبیری به دی سیزلی، خپلی شانه .

تا گومان کړو،

چی په دی شان دغلیم لاره شوه بنده،

هیڅ دښمن به، په تاونه کاندی برید نور .

په واقع کی، ته خو هغه قهرمان یــی،

چی دی خپلو فتوحاتو یــی، مات کړی، مغلوب کړی .

اوس نه پل شته، نه معبر شته چی پری تیرشی .

نه کشتی شته، نه زورقه، چی په سیند دې پوری باسی،
لاری نشته .

تولی بندی دی تړلی .

یګانه لار، دخپل ځان دهیرولو،

هغه‌لارده، چې‌یې‌سی زه درته ښایم .
یګانه پړاو چې‌هلته،

دخپل‌ځان‌له جهنمه، خپل ځان خلاص کړی،
هغه ځای دی،

چې‌زه اوس تا، دخپل‌ځان سره هلته بیایم .

* * *

دلومړی کرت دپاره،

په‌خپل ژوند کی،

قهرمان په حساب پوه شو .

بینائی ورته پیداشوه :

چې‌هیڅکله، په‌عالم کی،

تبتیدلی هیڅوك نه‌شی له‌قسمته .

که هرخومره نن سبا کړی،

سرنوشت ته،

بیاسبادی، بیاانجام دی، خاتمه‌ده .

قهرمان په ژورتل کی‌دهستی خپل،

احساس وکړو :

چې‌مطلق یوازی پاتی‌دی یوازی،

زه هم چیرې فرزانه وم فرزانه یم لا تر اوسه
تل بیخوده دیوا نه وم دیوانه یم لا تر اوسه
جدایی نشته وصال دی ځني بعد و همخیال دی
له هغه چی همخانه وم همخانه یم لا تراوسه
چی راغلی په جهان یم خبر شوی په خپل ځان یم
د رازونو خزانه وم خزانه یم لا تر اوسه
په عالم زما خبری خلق کا په نژدی لری
په وگړو افسانه وم افسانه یم لا تر اوسه
خوشحال ختټك

# ځانځانی ښامار

## دویم څرخ

**یوځل بیا راستون ښامار شو**

او فقط یوه لاره پاتې، بله نشته .

هغه لارچې تللې تللې، دناشنا منزل په لورې،

په تورتمو تر ږمو کې ،

نامعلومه، بې انجامه . . .

نورا پاڅېده ولاړشو .

دتورتم په پرښتې پسې روان شو .

بیارا ووتل دوې دواړه،

دمانۍ له کنډوالونه،

دلوی ښارله خرابونه بیاروان شول،

لاړل لاړل کومې خواته نامعلومه . . .

چې دی توان وشي په لوی دریاب کې گرځه
پـه بیله کـې دی زوال وینم نهنـگـه

* * *

چاله ډنډه درگوهر نه دی وکښلی
قیمتي لولو لالاغواړه په یم کې

خوشحال ختټك

پنځم پـړاو

# دژوندون دچینې غاړه په تورتم کې

**افلاطوني سمڅه :**

وایـې وایـې :

په قدیم یونان کې؛

یولوی ښار د سمندرپه غاړه پروت و . (۱)

ښکلی ښار و،

---

(۱) دآتن ښار — دهنر، شعر، ډرامې، فلسفې او دیموکراسي ځانگوه.

ملغلره وه نایابه، له دریابه راوتلې.
بیا په دې سیمه راشنه شوه:
یوه ناشنا دګلو ونه،
څو موده ښایسته سمسور،
هم یې سیوری، هم یې ګل کړ، هم میوې کړې،
ترڅو وچه شوه خزان شوه.
دغه ونه، دحکمت د آزادی دمعرفت وه.
خولاوس هم، دهغې ونې له تخمه،
کله کله راشنه کیږی، نورو ملکو کې،
ښایسته ښکلې ګلونه، په باغونو کې یې په باغو کې
لنډه داچې:
په دې ښار کې یو سړی واوسیدلو،
لوی حکیم و، افلاطون دزمانې و.
ستروا کمنه ددې سیمې،
«منیروا» وه، (۱)
آلهه دعقل او فکر دذکاء وه.
زوړ حیکم بیا،
ددې سترې آلهې دباغ مالیارو.
دافکارو ښه ګلونه به یې کرل تل.
دحکمت سمسوره ونه.
به یې تل سمسوره ساتله
عمر یې تیر کړ په فکرونو په سوچونو
دعالم پټ پټ رمزونه لټول (ه)،
یوه ورځې، داحکیم ستر،
دخپلو خاصو شاګردانو سره ناست و،
یوه ناشنا قصه یې وکړه.

---

(۱) Minerva دآتن دښار او هم په یونانی اساطیرو کې دعقل ذکاء الهه.

ده ویلی:

«ـ شاگردانو!

درمعلوم دي په جهان کی .

یو موجود په نوم انسان شته.

ښه خبرشئ ،

داموجودځ زندانی پروت دی په یوه سمڅ کی.

لاس پښې کلکې تړلې ،

مخ دسمڅی دیواله ته،

دغارخولې ته دده شاده.

خپلې شاته کتی نشی.

اوبهرله تورې سمڅی په بیدیا کی،

یولوی اوربل دی لمبی کړي.

دلمبو رڼا ترمخه،

راز راز ژوی راز رازشکلونه،

تل تیریزي را تیریزی .

ددوی سیوري بیاورځی ننوځی مغاری ته

په دیوال باندې پریوځی.

زندانیان دمغارې چی هلته ناست دي.

کلک تړلې،

فقط وینې هغه سیوري، تورشکلونه ،

چی تیریزی راتیریزی ،

دهغه دیوال دپاسه .

زندانیان په دغه سیورو،

بیا گومان دحقیقت کړی.

شاگردانو! داانسان دی.

داجهان دظواهرو دده سمڅه ده زندان دی

حقایق ئې تول اوهام سیوري اشباح دی.

شاگردانو!

که انسان رشتیا طلب دحقیقت کړی،

نو پکار دي چی راپاڅی،

زنځیرونه خپل خپل مات کړي،

له زندانه خپل راووځی،

بیا بهر سمڅې هلته،

تماشه دجهان و کړی،

په رڼا دحقیقت کی...» (۱)

داقصه ناشنا قصه دزوړ حکیم وه.

* * *

گومان نه کړمه چی دا به حقیقت وی.

ماملکونه هیوادونه ډیر لیدلي،

په صحرا کـی مامزلی اوزدی کړی

ځینې ځینی حقایق می دي موندلي،

څو رښتیا رښتیا خبري مې راوړي.

یوه داچی —:

زندانیان یو وخت آزاد شول،

بهر ووتل له سمڅې،

چی کتل یې —:

یوه سوزانه داغزو ډکه صحراوه،

دافق تر کناره خپره لمنه.

---

(۱) افلاطون دجمهوریت پنځم کتاب

نژدې هلته ، دعالم له پیدا ېښته ،
دیو رود کوزوز بسترو په ډبروکې وچ شوي.
نورځه نه وو...
بله داچې :
زندانیانو هرې خواته پام نظر کړو،
خوهیڅ شی یې مونده نه کړ.
بس یوازې .
دخزان مازیگری ډك له خپگانه،
تور ماښام خړه تیاره و.
نورځه نــه وو ...
نه آسمان کی رڼـایی کومه ځلانده ،
نه پـه ځمکه کوم چا اورچرته بل کړی .
نودوی پوه شول،
چی رڼاهره رڼا کی چرته وی هم،
هغه هم پټه پرته ده ،
دتور غارد ژورتل په ترزموکــی .(۱)
نورباقی داستان عجیبه په دې شان دی ...

* * *

**مسافر لـه دوری ملکه**

لاروی دنیمو شپوهم هاغه شانې ،
دهغه وچ رود په غاړه،
دتورتمی سمڅی خولې تــه ،

---

(۱) یعنی هغه رڼاچی افلاطون په مافوق انسانی جهان کی لټوله ، هغه هم د نه دا نسان په تور تم طبیعت کی پرته ده .

په عمرو منتظر کښېناست .
رڼاګانی به له غرورا کوځیدلی، په دښتو به خپریدلی.
وړپسی به بیا روانوو تورتم سیوری .
رڼاګانی به ئې دوری زغلولې ،خړولی ،
درڼالښکر به مات شو، ترزمی به عالم ونیو.
بیاترشا به یونا څاپه درڼالښکر راووت
بیابه سیوری زغلیدل پنا کیدل تل .
دتورتم اودرڼا دی تلو راتللو ،
زغلیدو رازغلیدلو ،
لاروی لږ خبرولو ،
چې شپې ورځې دی روانی درومی درومی،
خوخبرله‌دی نه نه و ،
چې له کوم ځایه راځی دوی،
په دې هسې بیره بیره ،.
چرته ځی دڅه دپاره ؟
بیابه کله،
یواحساس (۱) شبیه امیدنژدې امیدته‌ورپیداشو .
نو خپل ځان‌ته به ئې ووی:
« زه ګومان کړم چې آخر به،
په دې‌سیمه‌څوك راپیښ‌شی.
په دی خوابه ګذروکړی ،
له ملکونه‌دورې‌دوری‌دلته‌راشی‌مسافر کوم.
دهغه دورې پراته هیوادکیسی‌به راته وکړی
ښایی‌ښایی‌چې‌دورك سمندرغاړونه‌خبروی

(۱) درښتینی انسانی عشق اومینی احساس .

زه به و کړم ترې پوښتنه:

«مسافره ستړی مشې !

په خیرراغلی له اوږدواوږ دومز لو .

راته وایه!

تاخو کړی په ناشنا سیمو ګذردی .

په دې خپل اوږده سفر کې کومه ورځې ،

ماز دیګر ماښام ماښام خو به تیرشوی چرته نه یې

کوم یو کلی نه نژدی ته؟

او بیا هلته ، تا به نه وی څو ک لیدلی ،

دیوې لارې په سر ناسته ،

چې اغوستې شین کمیس و؟

او بیا هغې شین کمیسې ،

تا ته هیڅ پیغام درنه کړ؟

دخپل دوری مسافر تپوس ئې و کړو که و نه کړو؟

د کوم ورکي سمندرغاړې یادی نه کړی ؟ .

زه بیریږم چې څو زه هلته رسیږم ،

ماښام تیر شپه به نژ دې وی

او هغه به له ډیر زیاته انتظاره ،

ستړې شوی وی ستومانه ،

پا څیدلې چرته تللی .

بیا په توره تیاره شپه کې به یې څنګ پیدا کومه ؟

مسافر به جواب راکړی :

«— هو— را یاد شو .

مایوه ورځې له سهاره ترماښام مزل و کړو.

مازدیګر لمرپریواته بیا ،

سخته تنده ستومانتیاوه شونډی وچی ،
سرتر پښو په دوړو پټ وم ،
په یو کلي مې ګذرشو.
نژدې هلته ، دهغی لاری پهخوا کی ،
یوه دخاورو ډیره ګی وه،
پاس پرې ناسته یوه ناشناعجیبه ښکلې .
شین کمیس یې وپه تن کی،
یومنګی ډک داوبویې خوا کې پروت و.
ماته څیرشوه په کتو شوه ،
خو هیڅ څه یې نهویلی .
زماسترګوتهیې کتلی په ژورژورنظر څو ،
دې زماله نظرها خوابل کوم دوری ځای لیدلو.
بیایې خپل منګی راواخیست دا وبوډک.
زماتنده وه بې شانه .
دواړه لاسه دواړه لپې مې وروړاندې په دعا کړې .
دواړه لپې راته ډکې داوبو شوی .
دمنګي یخی اوبه رڼی اوبه مې ډیرې وڅښې ډیرې وڅښې،
بیامې نورې پهسربادکړی په مخ باد کړی .
خوناشنا عجیبه ښکلی ،
په خوله هیڅ ونه ویلی .
زه هم چو په خوله په خپله لار روان شوم .
تلمه تلمه ، خوله دورې مې یوواړې ،
دآخر کرت دپاره خپلې شاته وکتلې .
هغه ښکلی په هغې خړه تیاره کې دماښام تور ،

هلته ناسته وه ، لاناسته ،
دچالاره يې ښارله .»

* * *

لاروی بیا،
خپلې شاوخواته ښکته پورته پام کړو .
ځانته یې ووې :
« ښه پوهېږم ښه‌خبریم .
چې‌په دې لاربه تیرنه شی ،
کوم سیاح کوم جهانګرد هیڅ .
ځکه دلته کومه لاره نړۍ لارنه ده راغلی .
له دی ځایه کومې بلی خواته تللی .
سره له دې هم ،
که سیاح کوم خپله لاره کاندی ورکه ،
اوپه دی سیمه را پیښ شی ،
که هم ستړی وي ستومانه ،
په یقین چې‌دی به تږی وی بې شانه ،
دغه تنده به مجال ورته ورنه کړی ،
چې‌ددی وچ رود په غاړه دمه وکړی . »

* * *

## نا بلد ملګری

لاروی دنیمو شپو و ،
دغارتورې خولې ته ناست و .
داوینایې ځانته وکړه :
« ـ دااوږدی اوږدی مزلی چې‌ماو کړی،
له بیشماره هیوادونو نه راتیر شوم ،

دا مزلې وې يې ځايه .
په بې لاروخطا لارويم راغلی .
نه پوهيږمه چې کله په کوم ځای کی ،
اصلی لارشوه رانه ورکه ،
اوراسم په دې دښتو شړوميروشوم ؟
چاره نه وه ، ماخوهيڅ کولای نشو .
زوړ آشنامی وملګری همسفرو ،
لارښودنه يی کوله .
وې : بلديمه په ټولوسمولارو .
خوافسوس چې بلدنه و ، نابلدو .
دې ملګری زوړ آشنا خو ،
په نړۍ کی بل هيڅ شی ته نه کتلی .
پام يی کړلويک يوا زی
خپل خپل ځان ته ځانځانی ته .
چې په لار کی به ئی کله له کوم چانه تپوس وکړو ،
دخپل ځان دځانځانی تپوس به ئې کړلو .
يو هدف وبس له ده سره : هغه ځان و
يو مقصد له ټولو پورته : ځانځانی وه
ځانځانی به چې په هرلوری جولان کړو ،
دی ملګری به په هغه خوا ميلان کړو .
ځانځانی بهچې په هرطرف اقدام کړو،
دی ملګری به هم زرپه هغه لوری پورته ګام کړو.
ځانځانی چې به په هرڅه کی تکل کړو،
دی ملګری بههم داشانتی تکل دلارې مل کړو،
داملګری اوس چوپ شوی غلیغلی.

گمان کړم چې آخر پوه شو :
داچې مونږ دلته دې ځای ته رسیدلی ،
په بې لارو شړو لارویو راغلی.
مگر اوس هم خبرنه دی ،
چې نه مونږه کوم یوچایو غولولی ،
نه کوم سهوې اشتباه یودې صحراته راښکودلی (راښکدلی)
داقسمت وسرنوشت و،
چې پخپل لاس مود ځان دپاره جوړ کړو.
ځـکه ځـکه :
هغه وخت چې، داملگری هسی هسی مې دخپلی لاری مل کړو،
بیانو بله چاره نه وه،
غیرله دی چې په دغه لارروان شوو،
دغه لارچې لاره نه وه،
غیرله دې نه چې راورسیږوهسی دمه ځای ته.
دمه ځای چې په کی ځای ددمی نشته .
ددی زوړ آشنا شودنو لارښودنو،
زما سترگی نابینا کړی.
که نه کوم وخت چې موځان سمبالولو،
په سفر موپیل کولو،
هم له هغه وخته داتـکی معلوم و،
چې دتگ لاره روښانه رڼا نه ده.
ښی اوزدی سختی مزلی په تورتم کې ،
زمونږ مخی ته پرتی دی.»

* * *

لاروی دنیمو شپو هم هلته ناست و.
دتورتمی سمڅی څولی‌ته،
دخوړوچ بستر په غاړه.

فکر ئی کړلو دایسی سوچ و :
« ـ رڼاگانی زغلي، زغلی، له افقه پناکیږی.

مازیگرلاړو ماښام رانژدی کیږی.
اوس خو وخت ناوخته کیږی .
بله‌چاره پاتې نه‌ده، بله لاره کومه نشته.
ای دژوندډلار ملگریه!
ای زما پخوانی یاره!

اوس راپاڅه مخه ښه‌راسره وکړه.
یوله بله جلا کیږو، نوربیلتون‌دی.
ماتر خپله وسه وسه، اداکړی ،

ددوستی‌درفاقت دملگرتوب حق .
خپله‌خپله قربانی‌فداکاری وفاداری‌مې‌درښودلې
ته‌چی‌هر چیرته روان وی. زه‌روان‌وم.
تاچی‌هرامر کولو ماپه سترگو په‌لیمو خپلومنلو
تاچی‌هرلارښودله، ماهمهاغه لارنیوله.

تاویلی: زه مرکز دټول جهان یم .
ماباور کړو .

تاویلی: زه واکداره هم‌دځمکی دآسمان‌یم.
ما منله .
تاویلی: دستاینی دلمانځنی وړخوزه‌یم.

ماسجدی درته کولی .
دژوند ونلەسرچینی نەدیزه بوتلمدوري دوري
په دښتو، شړوڼاګونو،
په ځوځانو په اغزو کی سرګردان شوم.
اوس نو وایه چی څه وکړم ؟
ماته نور څه پاتـی نه دی .
ددې دښت غنو اغزومی پښی ډیرې دردولی .
ددې غرونو تیرویږویمه ژوبلژوبل کړی .
اوس په دی پښولینګو کی چی زمادی ،
نور مجال نور طاقت نشته ،
چې یوګام بلیوقدم بل، نور په تاپسی درواخلی.
چاره نشته .
مخه ښه درسره کـړمه جدا کیږ ویوله بله.
زمادوست زماملګریه !
دوداع په دی فرصت کی ،
که ګیلی بیانیدیشی یاکیدی شی ،
نوبیازه ګیای کوی‌شم ،ته‌یې نه شی.
که شکوې شکایتونه اوس کیدلی ،
شکایت شکوې به زه کړم ، ته به یـی نه کړې
خو افسوس چی ،
اوس مجال نه دشکووشته ،
نه فرصت دګیلو پاتـــې .
ځکه وینم هلته دوری
دشفق رنګین شفق په کنارو کی .

یوه پیښه حادثه لویه روانه .
دناشنامرغه ځانګونه تورځانګونه پری خپرېږی،
تورتم کیږی.
هم غرهار هم شور ماشور لەدورې اروم.
کوم جاکړ طوفان پەبیره راروان دی هیبتناکه
رارسیږی.
ددی توری مغاری په ژورتل کی،
هغه واړه شورشیان تول،
مینان دآزادئ چی:
د دی غارپه ژورتل کی بند پراته زنځیرتړلی،
هغوی تول اوس یاغی شوي ،
زنځیرونه یې شکولی،
منتظردی ترزمئ ته .
چی بیا تاله ځان سره بوځی ،
دتورتم دنیا په لوري نامعلومه.
زه بەد لته منتظر پەتمه نـاست یـم
ترڅو بیا پسرلی راشی .
بیا یوځلی سپین سباشي ،
یوځل بیادنیا رڼـاشي .

* * *

## دبیلتون شپه تورتم نه وه

لاروی آخر جلاشو ،
دخپل ځان له ځانځانی نه،
لەخپل «زه» نه .
دژوندون دلارملګری زوړ آشناسره یې وداع کړه
یوملګری ګران ملګری کەهرڅومره جفاکاروی

خوچې کله بیلتون راشـی ،جدائي شي،
اوښکې نشـي تينګيدلـی.
یو آشنا پخوانی دوست که‌ډیر بیرحمه په‌زړه سخت وی،
خو بیاهم کله چـی سپارو، په خپل لاس دی،
دتورتم دنیاګی غیزته.
زړه طاقت کولای نشی ،
غواړی چیغې کړی غوغا کړی.
لاروی دنیمو شپو ځانته ویلـی :
«ـ ښه ده ښه ده،
شپه اوزده مخکې پرته ده .
ترسباپوری فرصـت دی ،
چـی دژوند دغه ملـګری راپه یاد کړم ،
په زار زار ژړا فریاد کړم ،
اوښکې تويـی کړم بارانونه .
ښه ده ښه ده ،
چـی په دی شړه صحرا کې هیڅوك نشته ،
نه‌دچا بیګانه سترګې مې داوښکو تماشه کړی.
نه غوزونه اجنبي شته،چـی مې واوری فریادونه.
ښه ده ښه ده ،
هیڅوك نشته .
په دی زخم به څوك نه دوړوی مالـګه دزړه‌سوی بیا ،
نه‌به څوك وی،
چې زما په پرهار توی کړی،
ترخه زهر دزړه خوزی،شنه سنګتیا دهمدردی‌هم. »

* * *

لاروی بیاپه ژړا په واویلا شو.
دا ژړا په دغه شپه کی توره شپه کی،
ژړانه وه غلغله وه شورماشور و .
داهیجان دنا امیدی نه وسیلاب و،
انقلاب وډك له قهره له غضبه.
ده احساس کړو،
چــی دژوند او دهستی په ژورتل کــی،
قدرتونه زنداني ټول یاغــی شوي ،
ځنځیرونه ځاونی هی ماتوینه،
هم برجونه کلاګانــی ړنګوینه.
دهستی په صحرا باندی داقهرونه غضبونه،
دژوندون او سرنوشت نه ،
دانفرت او انزجار سخت ،
دغه ټول خبرراوړلو،
چی روان کوم انقلاب دی، کومسیلاب دی ،
دوجود په تاخانوکــی.
ځانته یــې ووې:
«ــ دقسمت او سرنوشت اوخدایانو،
فقط یو جواب پکار دی،
دا جواب یوه خندا ده،
یوه خندا هسکه خندا چی :
زمکه زمــکه په لړزه کړی ،
دړی وړی هسک آسمان کړي .»
اوښکې لاړی په قلار شوی .

ورو ورو لړې شوې غبار شوې،
ورکې ورکې تارپه‌تار شوې،
داپرده‌وشوله پورته،
داسرارو له جهانه.
داهیجان داسې طوفان و،
تابه وې چې یولوی‌بند، داوبوبندو،
له تهدابه راچاودلې نړیدلی راویران شو.
پەمودو دنډې اوبه هلته ولاړې،
لاړې‌لاړې په څپوڅپو سیلاب شو،
لوی ډاګونه ستر دښتونه یې کړه لاندې.

***

دژوندون چینه آخرشوله راویښه،طوفانی شوه.
دهستۍ له ژورتل نه شوه راپورته،
فواره شوه،بیاد اوښکوفواره شوه،
دارې دارې،څاڅکې څاڅکې.
لاروی ته شوه معلومه داخبره،
چې سرمسته مینان دآزادۍ ټول،
هغه واړه شورشیان یاغی‌یاغی هم،
را روان دي.
هم خدایان دهیجانونو عواطفو،
بیاراځي یوواری بیرته راستنیږی،
دده خپل شور اوفریاد خو،
دهغوی دراتګ زیری شورماشورو.
داسراروکلي پټه وه، دزړه په سوزاودردکی.
لکه څنګه چې رڼا دسپین سباخیری کوي تل دتورتم زړه،

ده هم داشانتې کړه څېرې داواهامو پرده توره .
لکه څنګه چې سکروټې پرتې پټې په ايرو کې،
کله کله رالمبه شي ،
دې هم داشان راولاړشو له ايرونه،
دهستۍ خپل-ې هستۍ خاورو ايرونه.
لکه مارچې زوړ پوټکې خپل ايله په ميزتون کړي
ده هم داشانتې دهغې سمڅې خولې ته،
دخپل ځان دخپل وجود يوزوړ قالب ورووست،
کړو غوزار دورې له ځانه.

* * *

لاروې دنيې و شپو چې، ګرځيدلو سرګردانه،
دهستۍ وچه صحرا کې ،
دده کلک داسې ګومان و ،
چې د ژوندله سرچينې نه، په بيشماره پړاونو دورې پروت دې.
خوناڅاپه يې کتل چې، دچينې په غاړه ناست دې.
په هغوناشناشيبو کې، چې سکوت وچوپيايې وه ،
ټول وجود يوه صحرا وه،
يوه صحرا دبيدردې وه، چوپ خاموشه،
ناڅاپې يوه رڼاوبريښيدله،
بياغرهار شو،
يوه چاودنه لويه لويه چرته وشوه
هلته ليرې دوجود په لوې تونل کې وردننه.
لاروې خپل ځانته ووې:
«-چې داوښکو څاڅکې څاڅکې راروان شول اوس له سترګو،
نويقين دې:

چی دخوږ په وچ بستر کی به روان شی دڅک رودونه او به مستی.
چی په زړه کی دسوزونو ددردونو اورلمبه شو،
چی فریاد چیغه شوه پورته له سینی نه
نو باور کړم:
چی باغونه به سمسورشی او مرغی به شورماشورشی،
چمنونه به زرغون شـــی،
غرځنی به شی روانې مستی مستی.»
لاروی احساس کولو چی سهار رانژدی شوی .
دژړانه ترخندا پوری پرته ده لنډه لاره،
لنډمزل دی.
لاروی خپل ځانته ووی:
«ــ څه موده به تیره نه وی،
چی راجګګ به له کوم خواباد سباشی.
دا استازی درڼا به الوته کا، په دښتونو غرورغونو.
بیا به سری شی بیا به سپینی، دافق کناری دوری.
دمشرق له سره پالنګه به رڼا کړی سرراپورته.
الهه دپسرلی به بیاروانه خرامانه په دښتوشنوچمنوشی.
او هم زه به دخپل توری شپـــی سفردلته تمام کړم.
بیا به کړم اوزدې مزلې له سباسره.
لوی لاری به آشنا وی،
پراوونه به رڼا وی.»

* * *

لاروی دنیموشپو لاهلته ناست ومنتظره،
دتورتمی سمڅې خولی ته.
دسبالارښی څارله.

ده گومان کړو چې شفق به یوځل سورشي بیابه سپین شي .
دی به پاخې راولاړشي،
په رڼا کې به منزل کړي درڼا جهان پلوری.
خو افسوس چې:
سپین سبالری وتلو، نه واتللو.
توره شپه اوږده کیدله، درندیدله .
نه پوهیږم څه موده شوی تیرې تیرې،
څو آخر لاروی پوه شو، ورو ورو پوه شو،
چې به نه کوم مسافر له دوری راشي ،
مسافر کوم ،
چې دورك سمندرغاړونه خبروی.
هم دلیرې هیوادونه پیغامونه ورسره وی.
نه به سر کاندي راپورته،
دافق له کنارونه سپین سباهم.
واړه لاری چې ورتلی دښار په لوری.
هغه واړه پټې شوې ورکې شوې پهځوځانونو په اغزو کې .
بله لاره پاتې نه ده.
غیر له هغې لنډې لارې چې دغارخولې ته ورتلله.
بل سفر په مخکې نه وغیرله دې ناشنا سفر اوږده سفر نه.
چاره نه و. غیر له دی نه چې روان شي.
لاړشي کوزشي ژورتل ته په تورتم تورتم دنیا کې .
ځکه ځکه ښکاریدله :
که رڼا که پلوشي وي،
که منبع درڼاگانو چرته وي هم
هغه هم پټه پرته ده دتورغار په ترزمو کې.

زیړ ډګای د ښامارانو :

لاروی دنیمو شپو نورخبرنشو.

چی په خه شانتی روان شو، دتورتمی مغاری دخولی په لوری

دماښام ښاپیر کو ځلانده سترګی بی حسابه ورته ځیروی.

دتورتم پهره داران و، هلته ناست ده ته ئی کتلی .

غڅوغمېوهری خواته وو جالونه اوار کړی .

تنابونه راښکودلی کلک ټرلی.

لاروی په ځان پوه نشو چی له دوی نه څنګه تیرشو.

لاړو لاړو ...

فقط دومره په ځان پوه و.

چې احساس دبیرې ډارهیڅ ورسره.نشته

بیالیدل ده،

چی روان قدم قدم و، کوځیدلوله زینونه،

په نرمی په آرامی ډیر.

دازینې وی هم اوارې هم پراخی.

دزینو رنګ معلوم نه و.

هم احساس کړو لاروي چی،

دقدم لاندې څه نشته.

نه ډبره کومه ځمکه کلکه سخته.

تابه وی چی هرې خوا ته هرڅه موم دی.

یوه ماده پسته سیاله هم بیرنګه.

ده ګومان کړووزن ئی نشته ،

دبنکی په شان سپک دی .

په لړزه لړزه روان دی.

په ورو وروښکته سقوط کړي .
دغ، ځای یو هسې ځای و،
چې نه تو دواونه سوړو،
نه رڼاونه تورتم و.
دیوالونه ښکاره نه وو.
شاو خواته هرڅه، ورك پنا پناو ،
په مغشوش خړپړ منظر کې .
خو یوازی هلته دورې په یوځای کی،
د تورتم په ژورپای کی،
یوه کوچنۍ شانتې رڼاوه ځلیدله .

* * *

په قدم قدم روان وکوځیداو،
دښکي په شان سپك سپك .
هغه تولی غاغلې تول شورماشورچې،
پاس د سمڅی په مدخل کی اورویدلو،
دهغو کوم اثرنه و .
نه غړمباوه د دیوانو نه شرنګار د ځنځیرونو .
نه دربا دزغلیدووه دوحشي مست مست آسونو.
نه خوهلته سمندر و، نه دریاب نه ئې بستر و،
چې به کله په قلار غلی خاموش و،
بیا به کله طوفاني شو له غضبه غریدلو .
هلته چپه چپیائي وه ،
بلڅه نه وو،
آرامي وه، ناآشنا سکوت سکون و .

* * *

هر قدم چې لاروی ښکته کېدلو،
سپین غبارترې تاوېدلو، خړې لړې زیاتیدلې .
په دې لړو په غبار کې،
ناشنا شبحې جوړېدلې، خوځېدلې هرې خواته.
بیا به تار په تار کیدې محوه کیدلې .
بیا به دورې هاته نورې نوې ښنې، داشباحو راو تلې
خوزیدلې، هم به تللې هم راتللې، جوړیدلې ور کیدلې.
دغه سمڅه ژوندی روح وه لاشعوره،
په سکوت په آرامۍ کې ئې ژوندۍ دخیال دنیاوه.
دغه سمڅه ژوندۍ روح په خوب بیده وه،
هې لګیاوه ځه خوبونه ورسره وورؤیاګانې ئې لیدلې،
د خیالونو تصویرو په جوړلو کلکه بوخته .

* * *

مودې ډیرې تیرېدلې،
به دې هسې ښکته تللو .
لاروی ښکته روان و، سپلک بې وزنه،
ژور تل ناشنا محل ته کوځیدلو .
سپین غبار وه خړې لړې،
ډوبیدلو ډوبیدلو .

* * *

پس له ډیر اوږده سفره،
لاروی آخر را ورسید یوځای ته،
هلته پروت و یولوی ډنډ عجیب بیشانه .
او به ډنډ ېکې ولاړې، تاریك تارې. ،
هم ګنده وې هم راکدې، هم مرداری .

رنګئې تور و، لکه زړه د توری شپې تور .
کنارې دډنډیې دوری وږ کې ور کې ناپیداوی .
لاروی ښه ورنژدې شو دغه ډنډ ته .
چې کتل یې، ډنډه ډ که دچمچو وه،
ملیو نو نه ملیاردو نه،
بې حسابه غټ چمچې کوچنې چمچي وو په اوبو کې
ښکته پورته ښوریدل ټول خوټکیدل ټول .
لاروی ورته ښه ځیر شو،
نو لیدل ئې چې چمچیان واړه چمچیان ټول،
یو دبل په ځان اختهوو، یو دبل په خوړ و بوختوو.
هې لګیاوو یو به یو خوړ بل به بل خوړ.
څیرول و ماتول و، خړول و .
تماشه وه وحشتنا که لړزوونکې.
بیا به ورو ورو په چمچیانو کې یو غټ شو .
نور چمچیان به یې خوړل ډیر .
بیا به نور هم غټیده قوی کیدلو .
دا چمچی به لوی ماهی شو . مارماهی شو .
جسامت به ئې غرونه غرونه دنهنګ شو .
هې چمچیان به ئې خوړل ټول ،
دتور ډنډ اوبه به ئې ځنبلې .
ولړزه تنده به ئې نوره زیاتیدله .
بیا پیدا به ئې پښې کړی ،
هم تیرې تیرې منګولې، هم وزرې هم ځانګونه .
هم اوربوز هم اوږدې داړې تیزغاښونه .
دواړه سترګې به ئې دوینو کټورې شول.

دسپیږمونه بهٔی داور لمبی ختلی .
دچمجی نه به غرجوړ شو .
نورپه ډنډکی نه ځایدلو .
نوپه ورو وروبه روان شو .
لهتور ډنډنه به راووت .
بیابه تللو پورته پورته .
دتورتمی سمڅی خولی ته .

* * *

له دی هسی تماشی نـه
لاروی لاړهاو ډوب شو ،
په بی وصفه لوی حیرت لوی تعجب کی،
ډیر خپگان ډیر تأثر ورته پیداشو .
نوله ځانه یـی پوښتنه هسیوکړه :
«دغه واړهولی ولی پهدی هسی شان پیښیږی؟
ولی ولی څه دپاره داسی کیږي ؟
ولیولی څه دپاره ؟
معنی څه ده ؟ »
داپوښتنه وه پوښتنه آخرینه .
ځکه ځکه داسوال خو،
دزاړهزاړهشعوردوروستهپاتیگرداوخاورهنهراغلیپورتهشوی
بیرته کښیناسته فنا شو په ایروکی .
پسلهدی نه، بیاهیځکله لاروی تهپیدا نشو داسوال نور.
غبارونه شو را پورته .
لړیلړي راپید اشولي غلیظی
هرڅه پټ شول ، هرڅه ورک شول
لاروی هیڅ لیدای نشو ، نه تر مخهنه ترشاخپل
نظاره شوه ډوبه ډوبه، په ابهام کیپهیوخړ تورتمماښام کی.
خوله دوری هلته دوری ،

لاهغه شان ځلیدله، رڼا ګی کوچنی ناتوانه
لاروی دنیموشپو بیا ،
چی هرڅو نژدی ورتللو ،
رڼاګی به دورې تلله، دورې دورې ځایدله ...

* * *

**سرالاسرا**

لاروی دنیمو شپونور ،
له خپل ځانه خبرنشو چی څه وشو؟
واړه ځمکی آسمانونه سره یوځای شول ،
یو په بل کی شوه دننه.
هم مکان زمان پیوند شول یوله یوبل سره .
بیاماضی اومستقبل هم .
دعالم بی انتها دوری قطبونه ، رانژدی شول .
یوله بله سره غاړه په غاړی شول .
دهغه حال په شیبه کی ،
تیت اوپاس له منځه لاړل ،
هم مفهوم دنژدی والی لری والی ورک نابود شو .
لاروی دنیمو شپونا ځا په ولید ،
چی دفتر دزمانی ورته برسیره مخکی پروت دی،
دآغازه تر انجامه .
کائینات بی انتهی هم،
له زری تر کهکشانه یوه صفحه شوه ،
بیا ددې له نظر تیره په یودم شوه ،
داعالم یوه لحظه ابدیت شو،
هرڅه هست وو، هرڅه نیست وو په یو لحظه شیبه کی ،
یو کیهان بی انتها و،
بی حساب کهکشانو نه ،غبارونه .
جوړیدل پکی لمر ستوری ،نظامونه ،

څرخیدل بیا، ځلیدل بیا، ورکیدل پناکیدل بیا.
دزری زړ کی رڼا بې انتها وه،
پکی بل لوی لوی اور ونه،
چراغو هلته نڅا کړه،
مشعلو هلته ګډا کړه .
داسپرغۍ ویهری خواته دنګیدلی،
بیادشپی په ترږمۍ کی ورکیدلی .
بیابه نور اورونه بل شو ل
نور جشنو نه به شروع شول .
ټول سیند ونه دریا بونه یی لیدل‌چی ،
څنګه درومی ،له کوم ځایه را روان‌کوم خوار‌وان دی ..
هم لیده یی سمندر چپی‌چپی ستر ،
چی موجونه غرونه غرونه ،
زغلیدل په‌کومی لوری ؟
کوموغاړو ساحلو باندی لښکری ؟
انسانان یی له‌نظر تیریدل ټول ،
له آغازه ترانجامه ،
چی له‌کومه پیداکیږی ،
عرا ده دسرنوشت کومه راکاږی ،
چرته درومی بیاڅه شانته فناکیږی ؟
په دی هرڅه کی معلوم یوحقیقت ورته ښکاره شو:
که زمان وکه مکان و ،
هغه واړه‌بی معنی وو:
که‌معنی وه فقط یوه وه دا معنی بی‌معنائی وه .

ځکه ځکه
که هرڅو مره دماضی په لوری لاړو دوری لاړو
که ئی سیروکړو په حال په مستقبل کی،
دزمان له دریاب پوری پوری غاړه هرڅه هیڅ وو.
بیشماره کیهانونه ، بی‌حساب، کهکشانونه بل‌څه نه وو.

زه په ځان جهان ښند مه
په آشنا پسی به ځمه
پری له پا سه قدم زد مه
که دښتونه بیا بان شی

* * *

چی په لاروی هغه ډیروی
یو څو ۰ اغو ندی گمراه وی
خوشحال ختټک

شپږم پړاو

# هغه ښارچی تورښامارور باندی ناست و

جزیرې کوچنی کوچنی وې، تاپوگان وو..
په دریاب کې نامحدوده نامفهومه .
دمکان لەدرشل ها خواهر څه تش هرڅه خالی وو:
له دی همه واړه تیرشو بیاراتیرشو.
دزری په زړه کی‌ننووت دننه .
هلته هم هغه دریاب ونامحدوده نامفهومه .
بی حسابه کیهانونه، بی‌شمارکهکشانونه .
جزیری وی تاپوگان وو،
له دی ټولو یوځل تیریوځل راتیر شو.
څوپه هرلوري چی‌تللو .
بس یوازې یوه مانع وه یو حائل و.
لاروی‌ورسره هرځای مخامخ شو.
داحائل فقط نشتوالی دمعنی ودمفهوم و .
داحائل‌نه و، دیوال و.
گیر چاپیره ، پاس اولاندی
له عالمه چاپیر شوی .
دادیوال دلایعنی‌و.

* * *

په آخر کی ،
لاروی شولو آگاه له هسی رمزنه.
چی‌هیڅکله بایدده موندلای‌نه‌وای.
خوده وموندە یوسرد ټولو اسرارو ،
دوجود اودهستی درمزو رمز .
ورمعلومه ورښکاره شوه،
چی‌عالم اوهستی واړه .
بی معنی دی بی مفهومه،
بی‌معنی اوبی مفهومه،
لټول دکوم معنی او کوم مفهوم‌هم.

# شالیلی په تمه ناسته

## گر یو ان خیری

لاروی دنیمو شپو په ځان پوره نه شو ،

خبره نه‌شو ،

چی په هغی توره‌سمڅ کی څه ورپیښ‌شو ؟

سمڅه څه شوه؟ اړې څه شوی ؟ غبارونه چرته لاړل ؟

فقط دومره ورپه یادشو ،

چی‌هم هلته ، په هغی تورتم دنیا کی ،

یو تونل وتللی‌تللی کومې خواته ،

پنا شوی پټ په توره توره شپه کی .

اوهم هاغه رڼاگی کوچنی ناتوانه ،

دورې دورې په آخرکې ځایدله .

لاروی په‌دې رڼاپسې روان شو ،

په تونل کې .

خوهر څومره چی نژدې (نږدې) ورتللو ،

رڼاگی به دوری تلله .

* * *

بیایـی ذلخا په کتل چی، هی روان دی ، کړی مزلی .
خبر نشو له تونل نه څنګک راووت؟
رڼـاګی کوچنی نـاتوانه څه شوه څه شوه؟
خبر نه وچی له کومو بیابانونو صحراګانونه را تیرشو ؟
څه بـی شماره پړاوونه ترشاپاتـی ؟
لاروی یوازی یو احساس کوکوچی :
بیړه بیړه عجله جلتي پکارده ،
منلی منلی ضروری دی .
ځانته یـې داوینا کوله :
«- زه بیر یزم ډیر بیر یزم ،
چی به خپل منزل ته ورسم که نه ؟
که هم ورسم مقصدته ،
نو ډار یزم چی فرصت بهوی تیرشوی ،
هم به وخت ناوخته شوی وی بـی شانه،
بیا به څر نګک خبروم زه دښار خلک ،
چی ښامار بیارا روان دی،
راستنیږی رارسیږی
ماخوتل ویلی ځانته
دا اوږدی اوږ دی استو ګی په ښاروکی
ښه کار نه دی ،
یو خطرلوی پکی پروت دی، یونا څاپه راولاړشی .
زه حیران یـم
ښاریان ولی نه بوګنیږی نه ویښیږی ؟
ولی نه اروی دوییښ زړه په غوږونو،

پیغامونه پټ پراته په افسانو کې؟»
داخبرې لاروي ځانته کولې،
اندیښنو کې ډوب روان په منډومنډو.
نه پروا ورسره دغنو داغزو وه .
نه سودا ورسره دلارودبې لارو.

* * *

بله ورځ چې ما زیگز نژدې کیدلو ،
نوله ورایه راښکاره شوه په صحرا کې،
آبادی د انسانانو.

ما نې گانې مناری لوړی گنبدی،
دتنا پو په‌شان درياب کې ځلیدلی .

څنګ چې لمر په پریوتو شو ،
لاروی دنیمو شپو ستړی ستومانه ،

تږی وږی شونډی وچې، پټ په دوړو،
آخر ورسيد خپل ښارته.

لاروی په لویه لاربانډی روانو ،
ورو ورو ښارته ورنژدی شو.

چې کتل یې .
په بیدیا کې، دهغې لارې په غاړه،
هلته ناسته وه په خاورو،
یوه پیغله نازنینه،

زوړ کمیس یې اغوستلی شین بخنۍ.

اوږدې زلفې پريشانې،
نرمې نرمې دصحرا باد ښورولې،

دغروب په سره رڼا کې ئې دسرو زروشغلې شغلې کولې.
يومنګې ډك داوبو يې خوا ته پروت و.
بيادا پيغله نازنينه،
لاروى ته په څير څير شوه،
په‌شيبوشيبو يې ده ته وکتلې.

ترڅو ناڅاپه مسکې شوه په خندا شوه.
تابه وى چې،
له‌کوم وخته چې عالم راپيداشوى،
دغه پيغله نازنينه هلته ناسته،
دخپل ورك مسافر لاره يې څارله،
دخپل ژوند اودهستى له ژورتل نه،
تمه تمه منتظره وه ديدارته،
ددې هسې سرګردانه مسافر خپل.
چې‌دا اوس‌و، دغه ځاى ته‌خپل منزل ته رسيدلى.

لاروى ناڅاپه وليد،
چې دورك سمندر غاړې،
دهغو آبـى چشمانو په درياب كې،
نژدې هلته ښكاريدلى.

دژوندون صبح صادق يې،
دهغو رنګينو شونډو په افق کې،
ځليدلو خنديدلو.

ناشنا پیغلی نازنینی،
شین کمیس څیرې ګیروانی،
اوږدې زلفې پریشانی ،
کړ راپورته خپل منګی په دواړو لاسو.
لاروي هم دواړه لاسه کړه ورپورته،
په دعاشو،
دواړه لپې ورنژدی کړی.
پیغلې تویې ورته اوبه کړی له منګي نه.
یخې یخې رڼې سپینې .
لاروي کړه تنده ماته خپله خپله،
بیا اوبه ئې لپې لپې.
په خپل مخ او په خپل سرهم وشیندلې .
خاورې دوړې ددښتو نو بیابانو ،
لاړی لاړی صفایې شوه .
دصحرا غبار ګردونه، ټول دردونه زحمتونه،
ورك پناشولو نابوده .
لاروی په زړه کی داسی زمزمی کړی:
«ــ جنی دزړه په کورکې ناسته .
ما په دښتو شړو میروکی لټوله.
یخې اوبه دلته منګی کې .
زه وچې شونډې په صحراکې ګرځیدمه»(*)

---

(*) دلبره ناسته دزړه په کورکی  مالټوله په شو رما شورکی
دلته منګی وډك داوبو نه  ماځان ستي کړو دتندی اورکی
دحافظ ددې شعر
یار درخانه وما ګرد جهان میګردم  آب درکوزه وما تشنه لبان میګردم

چې بیا وروسته،
لاروی ددی ناشنا پیغلې تپوس دحال احوال کړو،
دښار خلکو ورته ووې:
«-هغه پیغله زوړ کمیس خیرې گریوانه،
چې دلارې په سرناسته وی ملنگه،
دهغې نوم خولیلی دی.»

* * *

**ښار دزړه په سترگوړوندو**

لاروی دنیموشپوچې، بیانژدی ورغی ښارته،
نو کتل یې،
گرد چاپیرله هغه ښاره،
یوخندك ژور خندك وکیندل شوی.
هم تاوشوی تری دیوال و،
یوبې شانه لوړ دیوال پلن،
ځای په ځای پکې برجونه تیر کښونه.
لاروی متعجب شوپریشانه.

* * *

بیادلویې دروازی نه لاړوتیرشو، وردننه شوپه ښارکی.
هاخوادې خوایې کتلی:
هیڅوك نه وو،
کوڅې تشی لارې تشی،
دکورونو دروازی کلکی تړلی،
هرخوا چپه چپیایې وه.
په دی وخت کی را پیداله کومې خواشو،
یوسړی وشائې کړوپه ملائې کړوپه،

هم په دوا ړو سترګو ړوندو،
يوه امسايې لګوله، رانژدې شو .
لاروي ترې تپوس وکړو:
«ـددې ښارماشومان څه شول؟چرته تللي؟
نه آواز دخنداګانو، نه دلويو شورماشور شته.»
پهشاکوپ ړوند په خنداشو،
يوه خندابده خنداترخه خنداوه.
نوئې ووې:
«ـ له تپوسه دې ښکاريږی،
چې راغلی له کوم ځايه ناآشنايې،
اجنبی يی مسافر ئی،نابلده،
بی خبره ددې سيمې له رسومه له رواجه.
پهدې ښار کې،
ماشومان بی ځايه نه ګرځی کوڅو کې.
زمونږ سترواکمن په امر،
ماشومان له کوچنې توبه روزل کيږي،
چې تورزن شی،مړني شی جنګيالی شی،
دهيواد جنګ ته تياروی،
خپل محبوبه فرماندارته وفاداروی.»
لاروي چیداخبرې وارويدلې،
نودچرت په ډنډ کې ډوبشو،
انديښمن شولوبی شانه

* * *

څو قدمه پرمخ لاړو .
لاروي ليدلی ښځی، له کورونه راوتلی.

غلي غلي په احتياط ډير، په خلوت خلوت کوڅو کي ګرځيدلې.
جامې تورې، سر تر پښو په پردو پټې، ستري ستري.

*   *   *

د کږو وږو کوڅو نه لاړو تير شو،
لاروی ورسيده دښار مرکزته.
نوئي پام شو يوی عجيبې تماشي ته.
يوه ماڼۍ هلته ولاړه هسکه دنګه،
زينې ستني رواقونه درخامو دمرمرو.
هم دهغې ماڼۍ خواته،
يو معبد وبا شکوهه.
هم يو ستر بودا راهب هلته ولاړو،
ژيړ کميس اوږد کميس يې و په تن کي.
ډير ځوانان هلته لګياوو،
دراهب تر فرمان لاندې،
لاروي چې داحال وليده؛
دمعبد په خدمت بوخت وو.
بې اختياره په خندا شو.
ځکه ځکه داداستان هسې داستان و،
چې ده چرته اوريدلې په بل ځای کې مکرر وڅو څو واره.
لاروی په حساب پوه شو،
چې ده ځان رارسولی دی منزل ته،
خوناوخته ډير ناوخته دی راغلی.
اژدها توره بلاله ده نه مخکې،
ډيره مخکې رسيدلې، په دې ښارده کښيناستلې.
په دې سوچ کې ډوب ولاړو،

ترخو ناخاپه يې پام شو،

چې ټول خلک هک حیران هلته ولاړدی ،

ده ته ګوري تماشه کړی .

ستړې ښځې ځغلې،تړې پټیزې،

مخ ترې اړوي له شرمه.

دی له ځانه خبرنه و:

چې په سمڅو مغاروکي،

داوړدو اوږدو استوګنو په مودوکی،

ټول ویښتان یې اوږده شوي، سربېرزیره ببره،

ویښتان هرخوا ځوړند ځوړند .

په صحراپه بیابان کی

داوږدواوږدو مزلوپه دوران کی

لاروی دتن جامې وی څیرې شوی،

بیا ټوټې ټوټې ښنتلې پاتې شوی په ځوځانو په اغزوکی.

لاروی ښارته راغلی لوڅ لغړو.

هم په دی اوږده سفرکی،

لاروي نه هیرې شوې وې خبرې ډیرې ډیرې .

دده هیرودلوڅ توب او بربنډتوب معنی مفهوم ټول.

دی حیران وچې څه پټ کړي؟

اوداڅه، له چانه پټ کړي؟

هغه څه چې ده موندلی وو له ځان سره راوړي ،

له هغو نه مقصد داوچې ښکاره شی بی پرده شی.

نوداځکه :

لاروی په هغه ښارکی هرې خوالاړومشهورپه لیونتوت شو.

دښار خلکو به ویلی:— دی مجنون دی.

## په ړ ندوکی یو بینانوم یی مجنون شو

لاروی دنیمو شپو چی یو ځل ښارته خپل راستون شو،
دښاریانو په خندا به ژړیدلو،
دښاریانو په ژړا به خندیدلو.
کله کله به ددی سیمې واکدارلوی فرماندارستر،
دجنګونو فتوحاتو نه راستون شو،
توره ډال به یې ترملاوو،
پولادی زغره په تن نیزه په لاس کی،
په تورآس به سپور روان وه
ښځې نرواړه زاړه به راوتل پذیرایی ته،
کتارونه به دلوی لارې په غاړه دریدل دمخلوقاتو.
هاهلی وې شورماشور وخوشالی وه.
ټولوخلکو بهدایوه چیغه وهله:

«- ژوندی اوسی تل تر تله اې زمونږ ګران قهرمانه!
جانشین دستراېګوستر پهلوانه!
ربدې درکړی تاته عمر جاویدانه!»

لاروی به تل ژړلی، په دی هسی خوشالیو.
چی به کله باغی شوی مینان دآزادی دسرمستو،
کلکك تړلی ځاونو کی زنځیرو کی،
په راښکو راښکو روان شول،
زندانو ته ځمکی تل کی،
نارینه به ډیر خپه وو ډیر غمګین وو،
ټولو ښځو ماشومانو به ژړلی.
لاروی به خندیدلو.

نو به خلکو یو له بل سره ویلی :

«- داسړی خولیونی رښتیا مجنون دی ! »

* * *

هغه څه ته به چې نورو ډیر ډیر پام کړو،

لاروی به ورته هیڅ اعتنا نکړه .

بیا کوم شی ته چی به نورو نظر نکړو ،

لاروی ته به بیشانه باارزښته ښکاریدلو .

دښار خلکو سره شوق و،

د مرغۍ د ښکار کولو قتلولو .

لاروي به دمرغانو شورماشور ته غوږ نیولو ،

هرماښام هرمازیګر تل .

له دې کاره به هیڅ نه ستړې کیدلو .

دښار خلکو به له ونو نه میوې راټولولې،

لوی خاښونه ځانګې ستې ماتولې پریکولې .

لاروی به په مودو مودو یوی پاڼې ته کتلې،

چې په څه شان د وزمې په غیږ کې ناڅي،

څه رنګونه،

څه بیشانه رڼاګانې په دې پاڼه کې ځلیږي ؟

نور به یې هیڅ شی نه لیدلو .

له دې هسې تماشې نه لاروی نه مړیدلو .

د ښار خلك یو پر بل پورې نښتي،

یې دبل په ښو اوبدو تل اخته وو .

لاروی به په یو کنج کې غلی کښیناست،

سر دننه په ګریوان کې چوپ خاموشه،

ځان تری هیر و، آسمان ځمکه به تری هیروو .

نودا ځکه، دښار خلکو به ویلی :

«- داسړی رښتیا مجنون دی . »

* * *

ځینو ځینو به هم دابیان کولو :

«- داسړی خولیونی دی .

ولی ولی آزادگرځی ؟

څوکیسی ولی نه تړی په ځنځیرونو ؟

ولی نه استول کیږی کوم زندان ته ؟ »

بیا به نورو ځواب ورکړو :

«- په رښتیاچی داغریب سروپ لیونی دی .

سره له دی هم زنځیري لیونی نه دی،

ضرر نه رسوی چاته، بی آزاردی .

د ښارنظم آرامی ته خطر نشی پیښولی .

بس یوازی،

د کوچنیانو ساده گانو سا ـ پری تیردی . »

* * *

لاروی به دښارخلکو ته دخپل سفر کیسی کړی .

دا کیسی به کم عقلانو ساده گانو اوریدلی .

خو معنی کومه معترئی نه موندله په کیسو په افسانو کی .

نورو خلکو به خندلی .

داخبری ورته پوچی ښکاریدلی .

بس یوازی .

ماشومان به کله کله د کورو نو دقیدونو نه راپټ شول .

لاروی ترخوابه ناست ووچوپ خاموشه .

اوریدل به یی داستانونه دخپل زړونو په غوږونو

ځکه ځکه پوهیدل دوی ،
دګیسو دداستانونو په اسرارو په رمز نو .
بیا به کله همداماشومان لوی شول غټ سری شول ،
نو به یی هیرې افسانې کړی .
هیری هیری معناګانې پټې پټې دژوندون هم .
دوی به هم په لاروی باندی خندلی .
بیا به دوی ټولو داویلی :
« ـ داسړی خولیونې رښتیا مجنون دی ! »

* * *

لاروی دنیمو شپو به دښار خلکوته ویلی :
« ـ ای ښاریانو راشئ واروئ !
ماملکونه هیوادونه ډیر لیدلی .
په صحرا کی مااوږدی مزلی کړی .
تورې شپې په ماراغلی .
په اوږدو اوږدو مودوهم ،
دسبا دراتلو لاری ماڅارلی .
دتورتمو مغارو په ژور تل کی ،
ترزمې مالټولی .
رڼاګانې می لیدلی .
په دی هرڅه کی معلوم یو حقیقت را ته ښکاره شو :
دزمان ددریاب پوری پوری غاړه ،
هرڅه هیڅ دی .
دمکان له درشل ها خوا .
هرڅه تش هرڅه خالی دی .
دا عالم اوهستی واړه ،

بې معنی دی بې مفهومه .
بې‌معنی او بې‌مفهومه ،
لټول دکوم معنی دکوم مفهوم هم .
نو داځکه :
فقط زه یوازی زه یم سرچینه دهرڅه زه یم.
په عالم کی دعالم دارزښتونو خالق زه یم .
په‌جهان کی معناګانی‌مفهومونه فقط زه ایجادومه.
په هستی او په وجود کی ،
دمعنی اودارزښ که رنګ اوبوی‌شته ،
دازما خلق او ایجاددی .
که هستي رنګین رنګینه ،
دازما په ارزښ رنګ ده .
که تري بوی راځی دمشکو دلو نګو.
دازما په معناګانو ده خوشبویه معطره .
او زه وایم :
دهستی معنالیلی ده .
که باورنه کړئ نوورشئ ورته ځیرشئ !
نو به پوه شئ :
چی‌زماپه معنا څرنګ دلیلی لبان رنګین‌دی .
بیازمادارزښتونو رڼاګانې ،
په څه شانې ،
دهغو آبې‌چشمانو په افق کی تل ځلیږی .
اوزمادخلقت عطرخوشبوی څنګ ،
دهغو زلفوولولونه چپې‌چپې راخیژی.»
لاروی به داخبری هسی کړلی .

دښار خلکو به خندلی .
په خپل منځ کی به یـی ویلی :
« ـ داسړی خولیونی ربښتیا مجنون دی . »

* * *

کله کله به راغونډ شول ،
ددی ښا تېول ساده ګان او ابلهان تېول .
لاروی پسی به لاړل .
ځورول آزارول ددوی مقصدو .
لاروی نه به را تاوشول .
بیاپوښتنی به یـی کولی ځای بـی ځایه .
لاروی خودی خبروتپوسونوځای بی ځایه ،
هرګزنه شوځورولی .
دځورونوآزارونو هیڅ پرواورسره‌نه وه .
ځوابونه به‌ئی ویل په نرمه ژبه مهربانه .
ساده ګانوبه تپوس کړو :
«ـ خبرنه یـی لیلی‌څه شوه ؟
ولی نه ورځی دیدارته ؟
خبرنه یې ؟
سره ډولی سنبالـه شوی .
شالیلی دی سینګار کړی پکی ناسته .
ځی روانه ده‌وړل کیـزی چرته‌دوری .
که سیل کړی‌زرشه‌په‌منډه‌منډه لاړشه ،
که نه وخت به‌شی ناوخته ،
لیلی‌تللی‌ځای‌خالی‌ته به ارمان کړی . »

«ـ ای زما گرانو دوستانو!
اوس په هیڅ وخت پس لەدی ناوخته نەشی.
ماخوځان رارسولی خپل منزل اصلی پراوته.
تاسو وایاست. لیلی څه شوه؟
نوزەوایم.
دازما زړه سره ډولی ده،
لیلی دلته ده دننه،
زما ځان زما وجود کی سینګارناسته.
هرساعت زما په زړه باندی قدم زدی.
دازما زړه دلیلی دقدم ځای دی.
زه تری یوه لحظه تلای نشم چرته دوری
او زما ددی هستی ددی وجودله قلمروه،
لیلی یو قدم بهرایښودای نه شی.
لەکوم وخته چی عالم را پیداشوی،
لیلی ماسره یوځای ده.
فقط زه تری خبرنه وم.»
ساده ګ نو بەتری بیا پوښتنه وکړه:
«ـ داته ولی دمرغانو آوازونوتەتل غوږ غوږ دی،
او هیڅ نه ستومانه کیږی؟
پەمړدو مودو دپا ڼوتماشه کړی،
چی دبادپه غیږ کی څنګه در ناپەمخکی ناځی؟
لەدی هسی تماشی نه ولی هیڅ نه ستړی کیږی؟
پەشپږشپږ په ورځو ورځو،
سر دننه پەګریوان کړی ،
غلی ناست یی دخپل ځان سره .
ولی ولی له خپل ځانه آخرنه بیزاره کیږی ؟»

لاروی به جواب ور کړو :
«ـ اې زما خوږو دوستانو !
دامرغۍ چې شور ما شور په باغ او بڼ کړی،
ثناګانې دلیلی وایي .
دلیلی پرستش کاندی.
دغه پانه چې ښوریږی دسباباد ته، رپیږی،
که آوازته یې غوږ کښیږدی،
دالمنه شین بخنه دلیلی ده شرهار کا .
تاسو وایاست :
ولی ولی همیشه سر په ګریوان یم؟
رانژدی شئ ښه غوږ کښیږدئ !
نو به پوه شئ په اسرارو.
واروئ واروئ دلته دلته .
په سینه کې مې دننه دا دربهار دی .
ساده ګانو ؟ تاسو وایاست:
داخوږه دی چې دربیږی.
دازړه نه دی .
دادرباردبل څه نه ده،
داآوازدی دلیلی دقدمونو.»
سادګانو داخبری هسې هسې اورېدلې،
بې مفهومه بې معنی ورښکارېدلې
نو بېدوی همیش خندلی اوویلې:
«ـ داسړی رښتیا مجنون دی !»
ساده ګانو که هرڅوخندل خندلې،
لاروی به جواب ور کړو :

لاروی نه ځوریدلو .
ځکه ځکه‌دی اګاه‌و ،
چی په ژوند کی که معنا کومه معنی شته ،
دامعنی فقط خنداهسکه‌خندا‌ده .

* * *

## دهستی په خراباتکی‌شورماشورو

یوه شپه‌روان ولاروی دښار په منځ کی ،
یوه کوڅه وه تنګه تنګه‌هم تورتمه،
لاروی تری تیریدلو .
ناځاپی یی شول تر غوزه ،
غلی غلی آوازونه دخندادتننګ تکورهم .
دی حیران شو
بی‌له فکره تأمله په آوازپسی‌روان شو .
کنډواله وه نژدی هلته .
بیازینی وی ورانی ورانی رنګی رنګی ،
دی تری کوزشو .
دتورتمو تنګو تنګو دهلیزونو څخه تیرشو .
په آوازپسی روان دخنداګانو تننګ تکورو .
دد هلیز په انتهاکی دروازه وه کلکه پوری ،
ده زنځیر ددروازی وشرنګولو .
آوازونه دخندادتننګ تکورناځاپه‌چوپ‌شول .
دروازه ورته برسیره په مشکل شوه
لاروی دننه لاړو .
لو یه خونه وه پراخه .
هم په‌منځ کی دلرګیولو ړی ستنی پرسیږی‌وی‌ولاړی.
پرسیږی پرسیږی

چت ورك شوی،
هم کنجونه،دیوالونه واړه ورك ووپه تورتم کی ،
هرخواشمعی لګیدلی ،
خړې خړې رڼاګانې ئې کولی.
ددی شمعوپه کم نوره پلوشو کی،
لاروی‌چی ښه کتلی،هری خواته ئې لیدل چی:
ځوانان پیغلی یوله بل سره غیږ په غیږ وو.
ځینی‌پټ ځینی لغړ نیمه بربنډ هلته پراته وو،
اودټولو په لاسونو کی جامونه،
هم‌په ځمکه هری خوا ماتې پیالې ماتې کاسې وې.
هلته شاته په تورتم کی،
غټ خمونه ډك خمونه چوپ ولاړوو،
تماشائی دمجلس کړه.
دمستانو له محفله یو ناڅاپه ،
شورماشورشولو راپورته .

ټولو غږ کړو :
ګورئ څوك دلته راغلی ؟
دازمونږ دښار مجنون دی،
اوس زمونږنن شپه میلمه دی.
په‌خیر راغلې ای مجنونه !
دامحفل زمونږ محفل ستاخپل محفل دی .
مونږ خوواړه ستا په شانه لیونی یو،
ستاپه شانه بـی خبره له خپل ځانه»
لاروی داسی غږوکړپه مستانو :

«- ای کونګیانو! تپوسانو! ګیدړانو!
دامستی ستاسو مستی څنګه مستی ده؟
چې دشپې په تورڅادرکې،
دښاریانو له نظره پټوئ ځان.
دامحفل څنګه محفل دخوشالی دی دښادۍ دی ؟
چې په شړو کنډ وا لو کې خرابو کې ،
غلی‌غلی جوړوئ ځان.

زه حیران یم چې‌داولې،
هغه څه چې په رښتیا باید ښکاره وی.
په دې ښار کې تل پټیږی ؟
هغه څه چې باید پټ پناپناشی،
په رڼا پسې پرده ګرځی ؟
ولی ولی دښارتول ریاکاران فریبکاران ټول
ځی معبد ته په‌رڼاورځ؟
ولی‌ولی راستکاران آزاد سرمسته ،
په تورتمو کنډوالو کې تل پټیږی ؟
په کوم ځای کې‌چې‌انسان شته ،
هلته سرهلته دماغ شته ،
اودماغ کې آزاد فکرمست خیالونه.
نوداستاسو څرنګ سرڅرنګ دماغ دی ،
چې هیڅ نه درپکاریږی؟
نو یوکار خوترې نه واخلئ
ترې نه‌کار دپښو واخلئ
په څلورو خو روان یاست ،

په سرونو هم روان شئ!»
چې مستانو داخبرې واورېدلې،
شور ماشور يي کړلو پورته .

ټولو ووې :

«ـ ای مجنونه ! ته رښتيا وايې!
په څلورو خوروان يو ،
په سرونو تنگ پکار دی .
داسرونه چې زمونږ دي .
غيرله درده بل څه نه کړی ،
داسرونه دماغونه بس يوازې دردوی مونږ ځوروی مونږ.»
په دی وخت کې لاروی ته چاتقديم کړه ،
پياله ډکه دشرابو .
لاروی ترې يو گوټ وکړو .
چې کتل يې ،
داشراب ډېر يې مزه تروه تازه ووه .
تهنگ ټکورته يې غوږ کېښېښود .
سازبې وزنه اودسازسرود آلات ټول،
واړه مات وو واړه گوډ وو ،
هم بدريخته بدجوړ شوی .
لاروي پوښتنه وکړه چې داولې؟
له مستانونه يومست داسې جواب کړو :
«ـ ای مجنونه !
دلته ووزاړه خمونه دزړو زړو شرابو .
خوزمنږه فرمانداد سترامروکړ :
زموږ ه

دخمونوزړونه مات شول ، خيتې څيرې .
سرې‌سرې وينې آتشيني دخمونو ،
شولې توې په تورو خاورو .
دازمونږ ساز اوسرود ټنګ ټکورونه ،
دښارلوی راهب خوښ نه کړل .
راپه قارشوپه غضب شو.
ښکلې‌ښکلې ربابونه ستارو نه يـې ټول‌مات ټوټې‌ټوټې کړل.
بيا ټوټې‌ئې کړلې ښځې دخندق په ژورتل کې .
ښکلې‌ښکلې سندرغاړې ،
ساقيان ، آزاد مستان ډير ،
له مودو راهيسې بند دي کلـک تړلې زنځيروکې ،
ددې ښاردځمکې لاندې زندانوکې اوس پراتــه دي،
اومونږ دلته ، دهغوی په ياد خاطر تل ،
کړو جشنو نه پټ بزمونه . »
بيايومست په سينه باندې‌ښوئيدلو،
په خاپوړ ور نژدې شو .
په ښبتلې ماته ژبه يـې تپوس کړو:
«ــ ای‌مجنونه ! راته وايه !
دجهان فرمانداران ټول ،
ولې‌ولې دامستانونه ډاريږي؟ »
لاروي ورته جواب کړو :
« له مستانونه ډارځکه :
چې مستې کې تل خطرپروت‌دراستې وی .
له شرابو بـې زار ځکه :
که څوک وڅښې قطره دوينوڅاڅکې ،

نو ر هز گزاخستی نشی له شرابونـه لذت کوم .
دتر خومیود تریخ حقیقت خوند زغملای نشی ،
پری گومان کوی دزهر و.»
بیا یو بل مست رانژدی شو په خاپوړ و،
په ننبتی ماته ژبـه یـې تپوس کړو :
«ـ ای مجنونه ! راته وایـه !
ولی‌ولی رهبانان دلوی‌معبد کوي تل کر که دمستۍ؟
ولی‌ولی دسرودساز وسرود څخه نفرت کړی؟
لاروی ورته جواب کړو:
«ـهغه څوك چی هڅه کاندی،
چی‌ژوندی‌دمرگ له خوندسره آشنا کړی ،
نوداهسی څوك هیڅ وخت‌زغملای نشی،
چی یی ننوځی زړه ته،
شو رلذت دژوندانه کوم.
هغه څوك چی‌زدی غوږونه داموانوغږ آوازته،
نوداهسی څوك هیڅ وخت اوریدی نشی،
دهستۍ او دژوندون سازو سرود بیا.»
بیا یو بل مست په سینه سینه راونبوید.
داسی ووې:
«ـای مجنونه راته وایه!
ته زمونږ پتو جشنو کی گډون نه کړی،
خو همیش ښاد او خندان یې.
نه کوم جام څښی‌دشرابو،
بیانوڅنگه همیشه مست لیونی یـې؟
لاروی ورته په‌دی شان جواب ور کړو:

«ـای زما خوزودوستانو!
خبر نه یاست تاسو څه یاست؟
تاسو واړه قربانیان یاست،
بی ګناهه قربانیان داژدها یاست.
داخو هغه اژدهاتوره بلاده،
چیدزړه په کندوالو کی ستاسوناسته ده میشته‌ده.
خبر نه یاست تاسو څه یاست؟
تاسوواړه زندانیان یاست،
زنځیرونه ځلونی درنه چاپیردی.
داخو هغه تورزندان دی،
چی‌په‌خپل‌لاس‌موخپل‌ځانته دی‌جوړ کړی آباد کړی.
ددی ښارمستان چی‌جشن کړی ښادی کړی.
ته‌به وي کوم ماتم دمرګ ماتم دی.
په‌دي ښار کی هوښیاران چی‌بیاماتم کړی ،
ته‌به‌وایی‌اموات مړی‌دی اختر کړی خوشحالی کړی .
په رښتیا چی دریا او دوه رنګی دغه انجام دی.
هغه څوك چی‌غولول کړی ،
په‌آخر کی دخپل ځان په غولیدوشی.
هغه څوك چی ریا کار وی فریب کاروی،
په خپل لاس خپل ځانته دام زدي،
په‌آخر کی ددی خپل تذویر په دام کی‌ځان‌راګیر کړی.

ای دوستانو!
راته‌وایاست!
له نشونه له‌مستی نه مومراداومقصدڅه‌دی؟

فقط یو څه:

هیرول دواقعیت دی‌نه مو ندل دحقیقت کوم.

شرابونه پیمانی ډکې تشیږی،

هدف څه دی؟

فقط یو څه:

چی‌دردونه دخودی‌دځانځانی‌لږڅه‌آرام‌شی‌لږقلارشی.

اونه داچی‌دخودی دځانځانی څخه آزادشی.

له‌خپل ځانه بهرلاړشې.

ای زما خوږو دوستانو!

داژوندون زما ژوندون خوبل څه‌دی،

یوه تنده سراسربی‌انتهاده.

داهستی زما هستی خوبل څه نه‌ده،

دایوشوق یو اشتیاق دی نامحدوده ،

که شراب خورم نوپکاردی،

چی‌داهسک هسک آسمانونه،

شی پیالی پیالی جامونه،

په کی می وی سمندری دریابونه،

سره شراب وی آتشینه په سرو وینو دشفق رنګ ،

هم زاړه وي ددې زوړجهان همځولی .

که نشه کړم، که مستی کړم،

نوزما هدف دانه‌وی‌چی‌ځان هیر کړم جهان‌هیر کړم ،

یاښادی یوڅوشیبی لنډی شیبی کړم .

ډیر وخت کیږی له‌دی‌هسی لنډولنډو ،

تیریدونکو ښادی ګانو څخه زه یم راتیرشوی.

دا زما شراب خوهسې شان شراب دی،
چې راندہ راندہ چشمان پری رنا کیږی بینا کیږی.
دا زما مستی خوهسی شان مستی ده.
چی کاڼه کاڼه غوزونه پری خلاصیږی .
نشه ستاسو خوزحمت لویه خواري ده ،
چې پرته ورته پهمیخکی هوښیاری ده،
بدفرجامه،خاتمه ئې سر دردونه .
اوزما په بی هوشی کی بیخودی کی ،
دخودی دځانځانی رنځونه تللی ترشاپاتی،
په پراوپراوتری دوری یم راغلی.
ای زماگرانو دوستانو!
تاسوو ایاست چی زه څنگ بی‌میومست یم؟
خبرنه یاست ،
داچی‌زه مستی مستی تل دایمی کړم ،
دلیلی سترگی خماری زه پری مست یم .
ورشئ ورشئ دلیلی سترگوته ځیرشئ !
هلته هلته لیدل کیږی دهستی خمارستان لوی .
خو داریږم چی‌به تاسوهلته هیڅ شی مونده نه کړئ .
ځکه ځکه دلیلی دیدار دپاره خوپکارده ،
ددی لمر ځلانده سترگي پشان سترگه ،
نورانی لویه روښانه .
دلیلی عشق دریاب‌دی .
ستاسوزړونه تش ، ځگونه ،
خالی تش تش حبابونه ،
خبرنه دی له محیط نه خبرله ژورتاه .
دالیلی دعشق دپاره ،

زړه په کاردی ناپا یا بـه نامحدوده ،
هسی زړه چی که ورتوی‌ستراوقیانوس لوی سمندرشی،
په‌کی ځای شی ، پکی ورك شی څاڅکی څاڅکی ...»
دمستانو مجلس چوپ و »
هرې خواته یو مطلق سکون سکوت و
همه واړه سرترپایه غوږ نیولی .
لاروی بیا ، د دوستانو په محفل کی
داناشناخبرې‌وکړی :
« ـ ای دوستانو !
لږراپاڅئ راولاړشئ !
ددی دشت وچ وچ ځنگلونه وچی‌ونی بی ثمره ،
واړه واړه ماتی غوځی کړئ له بیخه له ریښی نه .
بیاپه اور باندی لمبه کړئ ،
اغزی غنی دصحرادبیابان خپل .
هم مستان زنځیر تړلی په تورتموتاخانوکی
راآزادکړئ ! زولنی کړئ ماتی ماتی .
هم دزړونوکنډوالی کړئ ړنگی ړنگی .
کوم ښامار چی پکی ناست دی ،
داښامارتری رابهر کړئ .
بیاحلال دغه ښامار کړئ !
دښاماروینی بیاتوی کړئ ، په دی سیمه‌په دې خاورو .
ځکه ځکه :
طبیعت ستاسونه غواړی قربانی اوس ،
لویه سخته قربانی هم ،
قربانی دتورښامار مار .
دادشتونه ، وچ ډاگونه ، جل وهلی‌ځنگلونه ،

خزان شوی چمنونه ،

وا ره تندی دی زیلی ، سختی تندی .

بس یوه تنده : دښامار دوینو تنده

نو به هله ددی دښت زمکه لمده شی ،

ناشنا بوټی به له‌دی نمناکو خاورو کړی سرپورته .

شین کمیس به ئی په تن وی .

شورماشور به شی راپورته په جهان کی .

هنګامی دنوی ژوندبه‌راپیداشی .

نو به هله دزړګی په نوی کورکی .

نوی لوی چراغونه رڼاوکړی .

نو به‌هله دهستی خمارستان لوی ،

په هغو آبی چشمانو کی مونده کړئ .

نو به هله درمعلوم شی پټ رمزونه پټ رازونه ،

دمستی دایم مستی ، دآزادی دلیونتوب تول ... »

* * *

دغه شپه عجیبه شپه وه

دلو مړی کرت دپاره ،

داناشناخبری تولو اوریدلي دخپل زړونو په غوزونو.

دلو مړی کرت دپاره ، چاخنداتمسخرنه کړو

خلکونه وی : « ـ داسړی خولیونی دی. »

لاروی‌دنیموشپوخبری کړلی .

دهغه محفل مستانو اوریدلی .

دی خبرو کی مستانو پیداکړی‌بیاموندلی ،

کوم رنګونه کوم بویونه دمعنا وو .

دغه شپه عجیبه شپه وه .

دلو مړی کرت دپاره ددلبرمهرو یانوشهلا سترگی ،
ځلیدی لکه چینی‌ رنی رنی دغرورغونو .
هم دنجونو خپروزلفو پریشانو ،
خپرولوتازه عطر دصحرا وحشی گلونو.
هم دسروشونډوبوسه کی مزه گی وه
دگورگورو دموماړو .
دوحشی وحشی میوو ، د لوړوغرو نوځنگلونو
دغه شپه عجیبه شپه وه
هرهرگوټ دسروشرابو سور انگارو .
دژوندون عجیبه اورئی په سینوکی بلولو .
هرهرڅاڅکی دسرومیو یومشعل و .
کنډوالی دزړو نو یودم چراغان شوی.
اومستانودلو مړي کرت دپاره،
په‌مستی خپله نشه کی،
یوه ناشنا مزه مو ندله .
دالذت مزموزه خوند دآزادی‌و.

* ÷ *

## دمرگی سیوری روان ووژوندی سری وریسی تلل

یوه ورځ دورځ چی لمر تلوپریوتلو ،
دمغرب په‌لوری ښکته،
اوهم سیوری اوږدیدل تلل ،
دمشرق په‌لوری‌دښتو کی زغلیدل پنا کیدل تلل
لاروی له‌ورایه ولید چی دخلکو لویه ډله وه روانه.
یوتابوت‌دیوڅو کسو په اوږوپروت ددوی‌سیوری‌تلل‌ترمخه
دوی ترشا پسی روان وو .

دبیدیا دښتو په لوری تلل له ښاره پهوتو وو.
دهغې ډلې ترمخه.
دښار ستر راهب په اوږد زیړ کمیس کې ،
په وقار په تمکین ورو ورو قدم په قدم تلو .
چې دخلکو ډله کله دتابوت سره رانژدې شوه،
لاروی ورته دلار په منځ کې ودرید.
داسې ووې :
«- ای ښاریانو! راته وایاست!
دغه بارخړ رنګ درونډ باردی
چې ئې تاسې په اوږو وړی ء ؟
او داولې په خپل سیورو اوږدو سیورو پسې زغلیء؟
خبرنه یاست چې دسیورو سرعت زیات دی چټک زغلی ؟
پسې نشئ رسیدلای .
دغه درونډ بار چې را کاږئ،
دا درانده ګامونو چې رااخلیء،
ګومان نه کړم چې به ورسوئ تاسې کوم منزل ته.»
ستر راهب ورته په قهر وکتلې.
په ترخه ژبه ئې داسې جواب ورکړو:
«- ستاهستي ده یوه ونه،
بې ثمره وچ اغرنه،
نه احساس دخوشا لې کړې نه دغم کړې.
زړه دې تورلکه لوګې دی هسې کلک لکه ډبره.
نه دژوند درسره سوداشته،
نه دمرګ درسره پروا شته.
خبر نه ئې چې انسان په مړي ژاړی؟

بیاپه غم او په ماتم په احترام ډیر ،
داخپل مړ دوست اوخپلوانخاوروته سپاریٔ.
هم کلونه ورروسته وروسته ارمانونه کړئ افسوس کړئ،
دغه مړی یادوی تل.»
لاروی‌چی‌دا جواب په غوږو واورید،
نه‌حیران شو، نه ئی وکړو تعجب کوم .
خلك لاړو له‌تابوت سره،
لاروی هم په هغوی پسی‌روان شو، بهرووتل له ښاره
دښارلوی‌دیوال نه‌شاته هدیره وه .
په‌یو کنج کی کیندل شوی وه یوه کنده ښه ژوره.
هم په خوا کی ئی دخاورو یوه ډیری وه.
توري خاوري توري توري بوی هم ترې خپریدلو.
خوسړي هلته ولاړوو منتظره،
کلنگونه هم بیلونه ورسره وو.
دراهب په لارښودنه ،
ډیر اوږده اوجنجالی مراسم طی شول .
تابوت‌کښېښود شو په‌قبر کی‌دننه.
توري خاوري پري انبارشوي.
دهغه مړي پښو ته راهب ودریده ولاړ شو،
مخامخ دمغرب لورته،
باشکوه باعظمته لوی راهب و.
مخ څیره ساکن‌آرامه،
هیڅ کوم چاته ئی‌نظرنه کړو .
زیړکمیس اوږده لمن یی‌دماښام بادښوروله .

خللك ټول ترې نه‌چاپیرو و.
راهب پیل کړو په خبرو،
جګ آوازئی یونواخته ناموزنه.
دبیان په‌لو مړي سر کی،
راهب داسی څه بیان کړل ،
چی هیڅوك ئی په معنی‌نه‌پو هیدل‌هیڅ .
خلکو ووې: دادعاده مناجات دی .
بیا له «امابعد... » نه وروسته.
ستر راهب دهغه‌مړي نیك اعمال په‌نیکۍ یادکړل!
له بیان نه ښکاریدله.
چی دامړی په ژوندون کی داخلاقو نمونه‌وه،
دنیکۍ عالی مثال و.
بیا راهب ستر ،
دیو پټ مرموزه جهان کیسی شروع کړی .
وې: «دمرګ له‌درشل‌هاخوا بل ژوندون شته،
هم‌بهتره‌هم برتره.»
وې : «ددی دنیا خواري څه خواري نه ده،
همه واړه‌ګذري دی،
رښتینی درداوعذاب‌دی‌بل‌جهان کی‌چی‌ثابت دی‌ابدی‌دی .»
وې : «ددې دنیا عزت مال اودولت‌ته نظرمه کړئ،
ځکه داشان خاوری‌کیږي فناکیږي . »
بیایی ووې :
«- بس یوازی،
ښه عمل د لاری مل‌دی بل‌جهان کی .
ښه عمل بس قناعت دی اطاعت دی .

داخالي کالبد فاني دی خاوری کيږي .
مګر روح هيڅکله نه مري، کوی عمر جاويدانه .
دغه روح يوه سپرغۍ ده،
راوتلی دبقا د اورله زړه نه .
بيرته ځي له هغه اور سره يوځای کيږی .
روح يوڅاڅکی دباران دی،
ځي تو يږی په درياب کی،
په درياب دسعادت اونيکمرغۍ کی تل ترتله . . . »
چې راهب ستر کړلې ختم داخبری سترې سترې ،
لاروی دنيمو شپو پاڅيدولاړشو .
خلك ئی داسی مخاطب کړل :
«ـ ای ښاريانو !
سيوری مخکی تاسو ټول پسی روان وئ .
دغه سيوری دمرګ سيوری تاسو ټولورپسی زغلئ .
ماخو تاسو ته ويلی: له دې منډو نه به هيڅ په لاس درنشی .
خبر نه ياست، ښکار دسيورو آسان نه دی ،
سيوری چانيولی نه دی . »
لاروی دهغه قبر له سينی نه،
دنمناکو توروخاورو تازه خاورو،
يو ښه موټی ډك راواخيست .
دغه موټی ئی دخاورو،
د ماښام په نري بادکی په هوا کی ،
دمشرق په لور غوځار کړو .
بيائی داخبری و کړې :
« موټی خاوری تاسوو ليدی چی باد يوړی دوری دورې .

ددې خاورو هر زره به بیا ژوندون کړی،
مگر نه داموتی خاوری چې باد یوړې .
او نه دغه موتی خاوری به کوم ژوند دوباره وکړی.
چې دا تاسو اوس اوس کښیښود په دی گور کی .
خلکو پوه شئ !
نه قطره شته چې دریاب کی چیرته توی شي .
څکه څکه :
نشته نشته کوم دریاب نه سمندر کوم .
نه-پرغی شته چې یو ځای شی د کوم اور دسری لمبی سره .
څکه څکه :
لاتراوسه اوربل شوی چیرته نه دی .
راته وایاست : هغه موتی خاوری څه شوی ؟
ستاسو پام گرځول شوی دی نیستی ته،
داخو څکه چې هستي شی درنه هیره .
ستاسو زړونه هدیرې دی،
پکی ښخی داموا تو خاطرې دی .
داخو څکه :
چې په زړه کی موپیدا هیڅکله نشی،
د حیات سره تړون کوم،
شوق، آرزو د کوم ژوندون کوم .
ای ښاریانو !
ولی دا پوښتنه نه کوئ له ځانه :
که دا مړی نیکوکار و، ولی مړشو !
نو پخپله به داهسی ځواب وایاست :
چې له مرگ سره دنیکی او د بدی څه پروا نشته ،

ماوراء دی هم‌له خیره هم‌له شره .

مرگ نیستي‌ده دښو بدو .

مرگ عدم دخیر اوشردی .

د مرگی فکرونه څه دی ؟

بس مرگونه دفکرونو .

دمرگی‌هیله آرزوخو ، مرگ دهیلی‌دآرزودی.

که نیکی شته که بدی شته،

بس په دی ژوند اوجهان کی موندل کیږی .

او پکار دی،

چی په دی ژوند او جهان کی مکافات شی مجازات شي .

ځکه ځکه بل به نه وی کوم فرصت داهسی هسی .

هغه څوك چی قناعت کړی اطاعت کړی،

غلامی‌ته غاړه ژر زدی،

دغه واړه مجازات کړي .

هغه څوك چی شورماشور کړی بغاوت کړی،

دا انسان وړ دستاینی مکافات دی :

ای ښاریانو !

ستاسو جسم که فـانـی دی،

ستاسو روح هم بـاقـی نـه دی .

له‌دی‌جسمه‌هم‌لانوره‌زیاته‌زیاته‌گذری‌فانی‌فانی‌ده.

تاسو کله‌چی‌خپل‌جسم خپل کالبدخاوروته‌سپارئ،

له دی کـاره لاپخوا تـاسو پخپل لاس ،

خپله روح پخپله وژنـئ .

بیاد گور ترغاړه پوری ،

دغه مړه‌بـی ژونـده روحه ،

درنـده شخه یخه یخه،
په اوزو خپلوراکازئ.
راته وایاست:
آیا تاسو پرملا خپله پرشا خپله ،
د دی دروند باراحساس نـه کړئ؟
دا دروندوالی ددی پیټی خوزه وایم، و یم
سراسر ستاسو وجود کـی ،
داملاګانـی ټیټی ټیټی ،
داسرونـه ښکته ښکته ،
دامخونـه زیړ بیرنـګه ،
دا لینګی کازه وازه هم،
دغه واړه حکایت کړی،
له دی هسی د رانده باره شکایت کړی .
ای ښار یانو !
خبر نه یاست تاسی مړه یاست.
روح مومړ د ی فنـاشوی .
تاسو ټول خوبس یوازی ،
اشباحګانی بـی ژوندونه خیال اوخوب یاست.
تاسو څه یاست ؟
بس یوائحی یوه هیله بـی مفهومه.
یوه تمه نامعلومه دیوبل موهوم ژوندون یاست.
تاسو ټول پخپله سیوری یاست دمړو دامواتو.
ای ښاریانو!
که اوس هم ،
څه در پاتـی دژونـدون شوق او ارزو وی ،

نو دا مړی اُزغه هیر کړئ ،
په ژوندون پسی روان شئ ،
که لا اوس هم ،
که هوس د آزادۍ ستاسو په زړونو کی باقی وی،
نو خپل ځانته هسی وایاست :
چی تر ټولو زحمتونو عذابونو ،
په واقع کی ،
لوی زحمت عذاب همدادی
چی دا اوس یکی اخته یاست .
او تر ټولو درندو پیټونه درو ند پیټی بل یو نشته
واقعی تر ټولو درو ند بار خو همدادی.
چی دا اوس مو په شا پروت دی . . .

* * *

لاروی دا بیان کړلو .
شاو خوا راغونډ ښاریانو هی سرونه ښورول خپل.
په افسوس په تمسخرئی یوله بل سره ویلی :
«ـ دا سړی چورلیونـی رښتیا مجنون دی.
بیا په خړ تورتم ماښام کی ،
یو په بل پسی روان شول، ستنیدل د ښار په لوری.
لاروی هلته هم هسی ولاړو ،
هی خبری یی کول ،
خبر نه وچی نژدی په هغه ځای کی،
هیڅوک نه وو پاتی شوی چی دده خبری واروی
بس یوازی هلته دوری ،
یو نګر کوڅه د ب سپی و پروت په خاورو،

لاروی تــه ئی کتلی چوپ خامو شه.
لاروی خبری کړلی .
داخبری دماښام نری وزمی بیا،
وړلی وړلی دمشرق په لوری دوری،
له کوم ځای چی ر ڼــادسپین سبارا پورته کیږی.

* * *

**دړند و ښاردخطر سره مخا مخ و**

په آخر کی دښار خلکو،
که واړه وو که زاړه که ښځی نروو ،
لاروی دنیمو شپو ئی پیژند لو.
آوازه ئی دشهرت هرخواخپره وه.
ځنوخلکو به ویلی :
«ــداسړی اصلاله عقله بیگانه وو،
گرځیده به په بــی لارو شړولارو.
ترځو بالــکل لیو نی شو .
اوس لگیادی په دی ښار کی لیونتوب کړی .
په دی هسی شان بیقیده گرځیده ئی ښه کار نه دی
څه تجویز ورته پکاردی .»
ځنی نوربیا معتقد وو ،
چی داشخص عادی شخص نه دی .
روحانی دی قلندر دی،
لوی خاوند دکراماتو مقاماتو ،
په کلام کی ئی پټ پروت غیبی پیغام دی .

* * *

ښکاره نشوه .
چې له‌دی‌دوا ړو خبرو څخه کومه یوه رښتیا وه حقیقت‌و.
یاداد واړه ډلی تللی په‌خطاوی ؟
لنډه داچې،
بله ورځ،ورځ دبازاروه.
ګڼ شمیر خلــک ووغونډ شوی،
دښارمنځ کې ازدحام و.
لاروی خلــکوته دابیان شروع کړو:

«ـــای ښاریانو!
په یو وخت کې دلته ښــکلې ښایسته ښارو،
چمنونه شنه ځنګلونه تری چاپیرو و.
مست سیندونه ډك رودونه،
په دی سیمه کې په‌هره خواروان وو.
لویـی‌لاری هرخوا تللی‌رسیدلی.
ماشومان به‌لو بیدل‌دسیند په‌غاړه
ښه ځوانان‌وو ګرځیدل به.
ښکلی پیغلی سینګار کړی نڅیدلی.
هم‌دمینی راز اونیاز و،
ښکلول وزغلول و.
محبت وصفائی وه.
ای‌ښاریانو!راته وایاست!
ګڼ ځنګلونه شنه باغونه،
واره چاپه اورلمبه خاوری ایری کړل ؟
ددښتونو غرڅنی هم له کوم‌چانه تریدلی رهیدلی؟

دلته ښارو اوسیدل پــکی ښاریان آزاد سرمسته،
نه بـي بــي وه نه بادارنه فرماندار وو،
نه نوکرونه مریان نه وینځی مینځی.
دغه ښار یوهسی ښارو،
نه خندق تري نه چاپیرنه کوم دیوارونه حصارو.
ای ښاریانو! راته ویاست!
هغه څه شو؟ چاویران کړو چاتباکړو؟
څه بلاتوره شوه پری نازله؟»
دښارخلـکو داخبری اوریدلی،
په قاه قاه به ئی خندلی اوویلی ــ داسړی رښتیامجنون دی.
ځکه ځکه :
زمونږ پخپله دوی ته یادو، ددی سیمی حال احوال زوړ.
هم پلرونو له نیکونو له اجدادو روایت کړو،
چی همیش له ښاره تل پروت داخندق داشان دیوال و.
بهر هلته تل ترتله دا ډاگونه وچ دښتونه سپیره غرونه.
او دننه دښارمنځ کی ،
همیشه داشان ما ڼی ولاړه هسکه ،
پــکی ناست تل زمامدارلوی قهرمان و.
هم پلرونه هم نیکونه ئی تیرشوی واکداران زمامداران دخپل زمانو
لاروی خلـکوته بیاداشانی بیان کړو :
«ــای ښاریانو! راته وایاست!
ددی سیمی لویـي لارې چاویجاوړی کړی نابوده؟
ددې لاروسمو لارو لوی لوی پلونه
چاویران کړل چاخراب کړل ؟
تاسو نه گوری چی تاسو،

ځان پخپله په خپل لاس قلابند کړي ؟
په خپل لاس موتور زندان ځانته جوړ کړی.
که پوهیږې ،
دغه کارستاسو بې ځایه بیهوده دی.
ځکه هیڅ کوم غلیم نشته،
چی حمله په تاسو وکړې له کوم بل غلیم هیواده.
اونه بل کوم لوی خطرشته،
کوم خطرچی ورسره واړه مخ یاست ،
هغه دلته په دې ښار کی دي دننه
کوم غلیم چی په رښتیا دښار دښمن دی ،
هغه هسی سړي خوردی،
چی خوراك ئی ستاسو زړه دی ستاسو وینی دماغونه
داغلیم بل ځای کی نه دی،
ددی ښار په منځ کی ناست دی ،
اوس نو وایاست !
داپاخه لوړ دیوالونه حصارونه ،
داخندق ژورخندق دڅه دپاره؟
ای ښاریانو! دازما خبره واروی‌ء!
زه یوه ورځی دیو ښکلی ښایسته ښارنه بهر لاړم
چی اوس راغلم بیاراستون شوم،
هغه ښار می مونده نه کړو.
دهغه په ځای څه وینم؟
کنډوالی ویران ویجاړې،
او په دغو کنډوالو کی یو ښامار پروت »
داخبری چی ښاریانو واوریدلی،

دا کرت چانه‌خندلی.
خو بیاهم دوی یوله بله سره ویلی:
داسړی رښتیا مجنون‌دی لیونی دی

* * *

لاروی دنیموشپویوه ورځ‌راپاڅید،
دښار خلك ئی مخاطب کړه
دابیان ئی‌ورته وکړو:
-«ای ښاریانو!
خبرنه یاست ؟
چی‌یووخت خو ددی سیمی زمامداره ،
الهه دلو بهاروه ؟
ټول عالم ئی پرستش کړو،
نیکمرغی‌وه،خوشالی‌وه
اواوس وینم چی‌هغه دمینی خدایه،
تاسو ټولو هیرکړی‌تر که کړی،
په‌دردونو په‌رنځونو موځانونه‌اخته کړی ،
په اوهامو کی ډوب شوی
په‌غمو مصیبتونو گرفتاریاست .
ای ښاریانو!
آیاتاسو احساس نه کړئ ؟
خبرنه یاست له هغه زهر قاتله
چی‌داستاسوپه‌رگو په‌شریانو کی جاری شوی ؟
اوپه زړونو کی‌درتوئیزی ځاځکی ځاځکی ؟
آیاتاسوپه دی خپلو دواړوسترگو گناه‌کارو .
لیدلی نه شیء

چی رنځونه دری ساری ساری رنځونه
دری آفته تل په تاسو مسلط دی ،
هسی هسی چی له یو ځایه به په بل چاپوری کیږی ،
قتلوی هلاکوی ستاسو واړه ستاسو زاړه ستاسو ځوانان ټول.
تاسو واړه دخپل سر په ستر گو وینئ
چی دښار ښایسته ښځی ،
ښکلی ښکلی ماشومان او باتدبیره بوډایان خو
په نری رنځ دخپگان اوغم اخته دی .
رنځوران دی دعدم په لور روان دی .
او ځوانان قوی ځوانان مو
دغضب اوقهر سخته تبه نیسی
یو بل وژنی تو یوی دیو بل وینی .
واهمه او ډارخو هغه بدمرض دی
چی په ټولو باندی یوشان گډجاری دی ،
رنگوی مود زړه خونی ،
هرشپه موځنکدن دی ،
هرورځ دمرگ په تمه .
بل څه نشته ، بس یوائځی خپل مرگی ته ،
شپی او ورځی تیروي سباکوي تل .
ای ښاریانو !
ډیری ستر گی نابینا دی ،
ډیرغوږونه تپ کاڼه دی ،
په دی ښار کی .
نه رڼا رښتیا رښتیا دلته څوك وینی ،
نه آواز دحقیقت دلته څوك اروی .

روغ غوزنه بیناسترگی که پیدا کړي ،
نو به هله سرودونه دمستۍ دهستۍ واوري ،
نو به هله رناګانی رنګارنګه د ژوندون خو ،
په نظر کی درښکاره شي .
اروېدلی تاسو تولو دلیلی نوم ،
خو هیڅائی غږته غوږنیولی نه دی.
هم لیدلی تاسو ټولو دا لیلی ده ،
دماښام په ترږمی کی دمنګی سره دلاری په سرناسته ،
خو هیڅا ورته رشتیا کتلی نه دی.
ورشیء لاړشیء تری تپوس کړیء چی ته څوک ئی؟
نو هغه به جواب در کړی:
چی لیلی څه لیلی څوک ده .
په آواز کی به ئی داسی سرود واروئ ،
چی هرګز به یې هیرنه کړیء
هم به پوه شئ چی لیلی ناشنا انګۍ ده ،
کوم سرود دژوند هستۍ مرموز بیشانه .
بیا بیا وایی .
ژوند هستی ده د لیلی په خوله ګویانه
ورشئ ورشئ !
دهغوی شونډو خنداته دهغو ستر ګو ځلاته نظرو کړئ
نو به هله درمعلومه درښکاره شی ،
چی آزادمست مینان چیرته اوسیږی،
دآسمان آبی آبی رنګ ،
دبهار دباران وروسته په سبا کی ،

څرنګ رنګ دی.

ورشئ ورشئ !

دلیلی دقدم خاورې په باد کړیء

بیا په سترګو کی رانجه کړیء !

چې بیناشئ .

ای ښاریانو ! ښه خبرشئ !

تا سو واره مبتلا یاست په دردونو په رنځونو

د دی هرڅه علاج یودی درمان یودی :

دلیلی دپښو خاورته سر کښېږدئ !

سجده و کړئ !

دلیلی پرستش و کړئ ! »

داخبری ټولو خلکو اوریدلی ،

ټولو خلکو به خندلی او ویلی: -

«- داسړی رښتیا مجنون دی . »

# يو دفتر دزمانى په ختميدوو

يوه ورځ دورځو راغله،

ډير بيشماره ښاريان غونډوو دښارمنځ كى .

لاروى دنيۍو شپو پاڅيد ولاړشو،

آخر داناشنا بيان ئى ښارته وكړو :

« ـ اى ښاريانو! ښه‌خبرشئ !

ستاسو ستروا كدار بادار خو،

تور ښامار دى،

تاسو واړه بندگان ياست‌غلامان‌ياست ،

دښامار مار.

داوا كدار سترزمامدار موهميش تږى دى دوينو،

هسى تږى،

لكه وينوته چى تږي‌وي‌دغرورغوليوان تول

زړه ئي كللك لكه توركانى‌دبيابان،

لكه سندان‌دى.

كه‌هم وڅښى سمندر سمندروينى .

تنده یې لا پسې لمبه داور لمبه شي.

که هم وخوري غرونه غرونه ژوندي سرې،

ولږه یې لا پسې زیادت کالا شدت کا.

په‌لیوانو کې لیوه له وږو وږي.

په دریاب کې پررت نهنگ له تږي تږی .

ای ښاریانو!

ورشئ ورشئ !

خپل بادارته له نژدی نه لږ څه ځیر شئ !

هغه سترگې چې دده دي، دوه دوینو کټورې دي،

دغه سترگې دښامار دي.

هغه سرې لمبې دقهر او دغضب چې،

دوا کدار دمخ ځیرې نه پورته کیږي،

هغه اوردی چې راوځي دښامار پوزې سوزوونه.

دبادار هغه منگولې چې قوي دي پولادینې،

ستاسو زړونو کې تومبلي کلکې ښخې،

دامنگولې دبلادي، دښامارتورې بلادي.

ای ښاریانو !

ښه خبر شئ !

دابلا توره بلا چې دَننهَ ناسته په دې ښار ده.

له‌کوم بل پردي هیواده خوراغلې دلته نه ده.

دابلاده په دې کور کې روزل شوې.

له دې سیمې پاخیدلې،

پخپل لاس موله‌خپل ځانه راویستلې

په خپل ځان مسلط کړې.

دا بلاستاسو بلاخپله بلاده .

ځکه ځکه تاسو هر یو،
ښاماران ساتئ روزئ پټ
په سینو په خپلوزړو کی.
چی دلوی ښامار خوراك شی ،
چی ښامارلوی نور هم لـوی شي زورورشی .
خلاصیدای له دی ښاماره تاسونشئ
داښامار وژلی نشئ
ترڅو تاسو راپانه څئ.
داښامار پخپلو زړونو کی مړنکړئ نابو دنکړئ.
که دنفس بده بلا کړی څوك نابوده
نو به هله دبلاتورې بلاڅوك خوراك نه نشی
که دخپل زړگی ښامارمو قربانی کړو،
نو به هلته تاسو نه شئ قربانی دلوی ښامارمار.»
په دی وخت کی،
ستر راهب وراوتلی ،
دښامار دلوی معبده .
چپ ولاړو نژدی هلته،
غوږ نیولی لاروی ته،
ستر راهب له ځانسره ووې:
«ـــ داسړی رښتیا مجنون دی لیونی دی .
ځکه ځکه ،
دغه سر دټول اسرارو،
دغه رمز دټول رمزونو،
دغه اسم محضه،
هسی هسی بی پردی بیانول آسان کارنه دی.

زه حیران یم،
چې‌دا رمزد ټول رمزونو ده په څه شان پیدا کړی؟
داسړی گرچې‌مجنون دی ،
خوښکاریږی له دی هسی بیانونو ،
چې‌دحال‌مقام خاوند دی .»
ستر راهب داسوچ وهلو.
لاروی بیادابیان خلـکوته وکړو:
ای ښاریانو!
لاندی هلته دهغی هسکی ماڼی په‌ژورتل کی،
لوی زندان دی،
زندانیان پـکی پراته زنځیر تړلی.
پاځئ پاځئ !
زندانیان واړه آزاد کړئ!
زنځیرونه ځاونی کړئ ماتی ماتی .
دزړگی دماڼۍ هغه معماران چې‌شړل شوی،
تللی پټ دی چرته سمڅو مغاروکی،
داماهره معماران بیاراستانه کړئ!
دزړه خونه دوباره کړئ پری آباده.
ترڅوتاسودښامار مار خوراك نشئ : »

* * *

راهب‌پوه شو:
چې‌داهسی‌شان بیان دغه خبری چې‌مجنون کړی،
داخبری ددې ښاردعالم‌نه‌دی،
دادبل جهان آواز دی .
یوه دنیاپه رنگیدو ده.

یو دفتر دزمانی په ختمیدو دی.
داخبری همه واړه رسیدلی فرماندارته.
دی ښه پوه وچی مراد دمجنون څه دی؟
نوترخه خندا به ئی کړله زهرناکه.
به به ئی ووی:
«–داسړی خولیونی دی.
هم بـــی زوره بی قدرته.
دښار نظم نه خطر پیښوی نشی.»
مگر ورو ورو،
ځنی ځنی دښار خلك چی به کله شوه ناروغه،
دشاقه سختو کارونه،
نودشپـی به په تورتم کی غوندیدل دوی ،
دمجنون ځنی خبری به ئی پټی یادولی،
گونگوسی به ئی کول پټ،
زندانیانو په تور تمو زندانو کی،
داخبری اوریدلی ،
په خپل زړه کی ئی ساتلی،
منتظر آماده ناست وو کوم فرصت ته .

* * *

# يوه ليلى وه يو مجنون و
# دښا مار دربارته لاړل

هغه پيغله شين كميسى گريوان څيرى ،
چې له هيچانه ئې مخ نه پټولو ،
تل دلارى په سرناسته له منگى سره ،
اوستومانه مسافر چې را پيښ شوله كوم ملكه دورى دورى ،
دمنگى يخى اوبه رانى اوبه ورته تيارى آماده وى ،
دغى پيغلى ته دچاپام نظرنه و .
دښاريانو په نظرخو :
دهغى سيمى دنجونو په قطاركى ،
نه داښكلى وه بيشانه ،
نه ئې بل كمال لرلو .
ښكلى نجونه خو هغه وى ،
چې وى پټى په پردوكى سينگارناستى ،
ياخدمت ته وى ولاړى
دهغى هسكى مانۍ په دهليزوكى .

نو داځکه دغه پیغله ګریوان څیری ،
وه لویدلی دښاریانو له نظره .
فرماندارحتی دپیغلی له وجوده خبرنه و .
بس یواځی کړو اوړو دلاروی ، د ده خبرو بیانونو ،
داناشنانجلی مشهوره په هرخوا کړه .
دلیلی اودمجنون داستان تری جوړ شو ،
هنګامه شوه آخرورسیده غوږدفرماندار ته .
هغه سترفرمانروایوه ورځ مجنون اولیلی دواړه ،
خپل حضورته په دربارکی راحاضر کړل .

* * *

فرماندارلومړی مخ واړاولاروی ته ،
په زیږه ترخه آوازئی ورته ووې :
« ـ ای پردیسه مسافره !
چی دبل پردی هیواده ئی راغلی .
په دی ښارکی اوسیدلی ،
مونږ پناه تاته درکړی !
زه خواروم چی ته خلک رابلی تل ،
چی دخپل پلرونیکونومعبدپریږدی ،
پخوانی دود رواجونه کړی همه ترپښولاندی ،
دزړو خپلو پخوانیوعقایدونه لاس واخلی ،
اوددی ګدایی ګری ناشنا پیغلی پرستش ته غاړه کښیږدی .
دارشتیاده ؟ »
لاروی ورته جواب کړو :
« ـ ای دکل جهان باداره فرمانداره !

ستامعبد خونوی نوی نو بنادی .
نه ئی کلک نه ئی پاخه دی دیوالونه ،
نه ژورنه مستحکمه تهدابونه .
ددی سیمی رښتینی اصلی واکداره ،
رب‌النوعه دبهاروه ، الهه دعشق اومینی .
په دی ځای کی میشته خلکو ،
دهغی ښکلی دلداری پرستش کړو .
هرهرلوری هری خواته هرهرځای خو ،
دهغی دقدم ځای و .
چمنونه شنه دښتونه ئی معبدو .
دزړه مینه دهغی دعبادت ځای .
زه چی‌تلمه له‌دی ځایه ،
هغه ښکلی نیمه خدایه په بستر دشنیلولاګرځیدله .
غرځنوئی شنه لمنه بوبوله ښکلوله .
اوس چی‌بیرته‌یم راغلی،
له سفره راستون شوی،
هری خواته ریګستان دی وچی وچی صحراګانی .
بیابانونه د اغزو ډک تری را تیرشوم .
نه چمن و نه باغونه نه ځنګلونه .
چی را ورسیدم دلته،
نو لیدل می :
چی د زړه خونه ویرانه ړنګه کنډواله ده .
هم دننه یکی ناست یوتور ښامار دی .
خلك وینم چی روان دی په بی‌لارو شړولارو،

پرستش د اژدها کړی .
ای دکل جهان واکداره !
زه اوس دالوی حقیقت بیانومه هرهرچاته . »

* * *

د واکدار اوچولی تریوشو .
د غضب اورئې لمبه شوپه خیره کی .
یوه شیبه نیمه پهچرت شو .
بیائی وکړه یوه خندا د زهرو ډکه .
ځانسره ئی ووی :

«- پروا مه کړه !
داسری خولیوني دی بی قدرته ناتوانه . »
بیائی مخ کړو لاروی ته د دوهم کرت دپاره .
په پسته ظاهري ژبهئی تپوس کړو :
«- ای پردیسه مسافره !

راته وایه !
ددی ښارپه ښکلو نجونو کی تاځنگه غوره کړی،
داخیرنه داسوالګره ، بی کماله بی جماله ؟
او زما وفادارخلك زحمت کښه رعایا بیا،
رابلیته چیسرونه په سجده ورته نسکور کړی ؟ »
لاروی ورته جواب کړو :
«- ای دکلجهان باداره فرمانداره !

خبرنه ئی ؟
د ښامار زور اوقدرت خوفقط پروت دی ،
په هغه بیره اوډار او واهمه کی،

چې داخلك پرې اخته دی .

که دا بیره شي زایله،

دغه ډار او واهمه له منځه لاړشي،

نو ښامار یودم سقوط کړي نابود کیږي .

ښه پوهیږي :

د ښامار دقدرت رمز اود ښامار د مرګ طلسم فقط دادی .

اوهمدا شان،

دبهار د رب‌النوعی زور قدرت خو،

فقط پروت دی ، د ژوندو زړونو په شور کې .

سترمنې کې شي محدوده .

آزادۍ کې شي تبعیده .

ښاپیرۍ دعشق اومینې ځې سقوط کړي ،

ځانګ وزرئې ماتیږي .

دالیلی داشین کمیسی ناشنا پیغله،

چې هیڅ ړك ترې خبر نه دی دهیچا پرې نظر نشته،

په یو وخت کې الهه دنوبهاروه .

داخو هغه زمانه وه .

چې مستان آزادګان ټول،

ددې سیمې واکداران وو .

بیاچې کله واهمې اوبیرې ډار زړونه تسخیر کړل،

بینائی له سترګو لاړه .

خلك واړه شو محرومه،

له دې هسې همیش ځواني هم لرغونی رب‌النوعی له دیداره.

خلکو واړول مخونه له هغې نه .

د ښامار په پرستش مې کړه لاس پورې.

نو هغه بیا بهر ووته له ښاره،
هلته کښیناسته په خاورو،
دهغې لاری په خوا کې ،
دخپل ورکك مسافر لاره ئې څارله.
داخو هغه مسافرو زوړ آشنا دزمانو اوږدو قرنو،
چې تری ورکك و ،
ورکك دورکك سمندر غاړو پوری تللی ،
اوس راغلی راستون شوی ،

خو افسوس چې ،
دلته سترگې ډیری سترگی نابینا دی،
رڼاگانی درښتیا دحقیقت لیدلی نشی،
ډیرغوږونه، ټپ کاڼه دی ،
ترانی دژوندانه اوریدی نشی .
که نه یو نظر پکاردی دایلی په خیری بشری ته ،
چې اسرار رموز څرگند نه شی .
دهغو آبی چشمانو په دریاب کې،
دژوندون دسمندر غاړی ښکاریږی،
په هغو خندانو شونډو کې خو هلته ،
دژوندون دسپین سبا رڼا ځلیږی.
خو افسوس چې بینائی په چاکې نشته ،
خبر نه دی لیلی څوك ده .

بیره ډاراو واهمی خو ،
ددی خلکو په غوږونو زړونو سترگو ناشنا مهر لگولی .
ته دهغه شورماشور له واهمی نه ،

چې په شپوئې مانې له تل نه اروی ،
تمپ کونړ شوی .
ارویدی نشی آواز دحقیقت نور .
اوددی سیمی ټول خلک ،
چې تل وینی ستا خیره کی،
سری لمبې دغضب قهر ،
بیره ډاردی‌رانده کړی،
لیدی نشی رڼاګانی درښتیا دحقیقت هیڅ ،
ای واکداره ! زمامداره !
ستا سقوط ستا انحطاط خوزه ښه وینم،
ستا په بیره ستاپه ډار کی .

ښه خبرشه !
هغه شور ما شورچې اروی ته په شپو شپو،
دابه نور لاپسې زیات شي .
سرمستان آزادګان ټول شور شیان به ،
ځلونې کړی خپلې ماتی ،
له بندو نو زندانو نه به‌راووځی .
قلاګانی حصارونه به په‌اورلمبه لمبه کړی .
رڼاګانی به پیداشی ،
ړندی سترګی به بینا شي . »
ستر واکدارچې‌دا خبرې‌وارویدلی،
ډیر په قهر په غضب شو .
هم‌دزړه په ژورتل کی،
له مجنونه بیره ډار ورته پیدا شو.

مخ ئې واړاوه په قهراوپه غضب بیا،
ناشنا پیغلی ته یې غبږ کړو ، ورته یې ووې:
«— اوس ته وایه چې ته څوک ئې ؟»
شالیلی خیری گریوانه ،
کبرجنه بې پرواهلته ولاړه ،
په مکیز مکیز مسکی شوه .
کوم یو دوری دوری ځای ته ئې کتلی .
خوږ آوازئې ،
دمانۍ په دهلیزونو تالارونو ،
دمانۍ لاندی دننه تاخانوکی،
انگازی ناشنا کولی .

داسې ووې :

«— زه خوزه یم ! زه لیلی یم !
زه دمینی رب النوعه ، الهه دنوبهاریم
زماملک خو هغه ځای دی ،
چې سر مسته شور شیان ئې واکداران دی .
دآزادو مینانو زړه زما دقدم ځای دی .
زه بهرهلته لـه بناره
هرماښام په تمه ناسته وم دخپل مسافر لاره مې څارله.
داخو هغه مسافر و،
چې ئې زه ښه پیژندلم،اوهم زه یې لټولم .
خوخبرشه:
چې بې وروسته پس له دی نه .
مسافرکوم په دې لار گذرونه کړی .

ځکه ځکه:

نه کوم لار دلته راغلی، نه له دی ځای چیرته تللی.

هغه لاری چی راتللی، یا له دی ځای چیرته تللی،

هغه ټولی پټی شوی ورکی شوی،

په ځوځانو په اغزو کی.

لوی سیندونو رود خانو خپل مسیرونه بدل کړی.

کاروانونه اوس له دې ځای گذرنه کړی.

ځکه دلته نه رباط شته، نه کوم ځای نه دمه ځای کوم.

څه موده به تیره نه وی.

چی داته به هم په خپل وار،

د خپل پلار او د نیکه په لار روان شئ.

یوه ورځ به په دی خپل قهرمانی کی،

یلک یوا ځی ژوندی سری باقی پاتی،

په یو چپ دمړو ښار کی، په خاموشه هدیره کی.

زه به ځم بیا به کښینمه بهر هلته،

بیا به لاره زه څارمه،

چی بهار یو ځل بیا راشی،

راستانه شی سرمستان ټول،

مینان د آزادئ انقلابونو.

* * *

فرماندار سترچی داهسی گفتار وارويد،

وارخطاشو، غونی زیږ زیږ، په لړزه شو.

ده گمان کړو داخبری عجیبه خو،

ارویدلی دی کوم ځای ده بل کوم چیرته.

مگر بیری واهمی ولگولی یو لوی مهر،
دوا کدار په زړه په ستر گو په غوږونو.
په‌غوږو کوڼ،نابینادزړه په ستر گو،
شین کمیسی پیغله ئی ونه پیژندله.
ځانته ئی ووی:
«ـــ داخو دواړه لیونی دی .
زه بیریږم،
چی ددوی له لیونتوبه کوم خطررا ولاړنشی .
کوم ساری لیونتوب نه‌وی اوپه‌نورو پوری نشی،
دښار خلك تول اخته په جنون نه کړی . »
بیایی‌فوری لاروی اولیلی دواړه
وشړل له خپل دربار له حضوره .

* * *

هغه پیغله شین کمیس خیری گریوانه
دښاریانو په نظر دومره دپام نظرورنه‌وه.
لاروی دنیمو شپو خو،
دهغی سیمی دخلکو په ذهنو کی ،
لوی مقام وپیدا کړی،
دغیبی قدرت خاوند ورښکاریدلو .
فرماندارو بیریده‌چی،
دغه شخص که‌زندانی کړی یائی‌وشړی له‌ښاره،
کوم شورش کوم بغاوت‌را پیدانشی.
نوئی‌ځکه لاروی نه زندانی کړونه‌ئی وشاړه له ښاره.

چاره بله پاتی نه‌وه،

داخو څکه‌چی بیشماره زندانونه تاخانی‌وې‌زمکی لاندی ،

واړه واړه وو دك شوی،

په یاغیانو شورشیانو لیونیو .

دلیلی اودمجنون دپاره ځای پکی هیڅ نه‌و.

* * *

نوداځکه،

هغه پیغله نازنینه بیرته ووته له‌ښاره،

بیرته بیادلویې لاری‌په سر کښېناسته ملنګه له منګی‌سره .

لاروی‌هم لاړولاړو غلی کښېناست،

دخپل ښارپه کنډوالو کی،

دعالم په تماشه شو .

# ابدي څرخ

مجنون ناست وحال ويجاړی،
په خپل کنج کی،
دخپل ښار په ويرانه کی.
تماشه يی دجهان کړه .
فرمانداره دروازی کاڼکی ترلی دمانۍ وی .
هلته ناست و،
دبلورو په آئينو کی، دخپل ځان په تماشه و .

* * *

لارويبه په رڼو ستر گو ليدل چی،
ډير بيشماره ماشومان بهدځوانۍ لهعمره مخکی،
دعدم په لور روانشول .
ډير ځوانان به شول رهی دجنګ ميدان ته ،
يابه نه راستيندل ټول
ياخپل منځ کی پهجنګ په کشمکشوو،
يودبل په وينو رنګ لاس او منګولی.

پیغلی نجونی دخپګان پهٔنری‌رنځ تل رنځیدلی،

پهٔورو ورو خاوری کیدی ایری کیدلی.

معماران دزړه دمینی ،

یادښار په خندکو کی‌ور کیدل ټول.

یابه دوری چرته‌تلل پنا کیدل ټول.

بس یواځی لوی راهب دیر عمرو کړو اوزداوزد .

خو هغه هم په‌آخر کی په‌خپل وارخپل،

روح تسلیم کړه خپل څښتن ناشنا واکدار دبل جهان‌ته .

معبدورو ورو شړیدلو ړنګیدلو .

ځکه هیڅ ښامار پرست بل پاتی نهٔو،

چی‌دعا اوعبادت دپاره ورشی هلته لاړشی.

پدی شانی دښارمار د(لوی)معبد بازار کسلاد شو.

شاګردان دستر راهب هم.

چرته لاړل کومی‌خواته نامعلومه.

دښارمینی آزادې خونی کورونه، همه‌واړه،

ړنګیدل خرابیدل متروکیدل ټول.

دهغی هسکی، مانۍ په دیوالو کی،

لوی چاودونه راپیداشول.

دمرمر ښایسته تیزې دې خواهاخواغورځیدلی ،

اغزن بوټی شنه کیدل پری .

په آخر کی ښایسته قصرویرانه شوه .

باشکوه ویرانه وه ،

په یو شړاغزن بیابان کی دریدلی ،

بی معنی هیڅ بی مفهومه .

لکه زړه دیوانسان یو ځلی ناڅاپه دریږی ،
په دی نامحدود عالم کی وردننه ،
بی مرامه بی هدفه .
ښاردمرګ په خوب بیده شو ،
چپ خاموشه هدیره شوه ، خرابه شوه .
* * *
بس یواځی ژوندی پاتی هلته ناست وو :
لاروی په ویرانه کی فرمانداز خپله ماڼۍ کی .
هیچانه کاوه په دی سیمی ګذرنور .
ځکه لاری دلته نه را رسیدلی .
تولی لاری پخوانۍ زړی وی ور کی ،
په ځوځانو په اغزو کی .
مست سیندونه ډک رودونه اوښتلی بله خواوو ،
بدل کړی مسیرونه ،
بهیدل نورنورځایو کی .
هم اوږدو اوږدو بیشمارو کاروانونو ،
نوې لاری وې موندلی ،
چرته دوری په بل ځای ګشت او ګذر کړو .
* * *
فقطه یوه ورځ ، چی ماښام شو توره خړه ،
راپیداشوه له کوم ځایه ،
را روانه پته پته غلی غلی ،
یوه ناشنا زړه بوډۍ وه .
دښارلوی دروازی ته ودریدله .
خیره بده هم مرموزه ،

هیولاوه بد منظری .
تور کمیس تورئی پرتوګ تورئی زړوکی دلوګیوو .
دښارلویه دروازه شوله برسیره په خپل سرله خپله ځانه .
بوډۍ ننوته ښارته .
دهغی لوی مانۍ په لوری‌لاړه .
خوناشناشانته بوډۍ وه .
بی له دی نه چی‌قدم په زمکه کښیږدي ،
دښایسته زینونه‌وختله پورته .
بی له دی‌نه چی کوم مکث یاتوقف کړی
دمرمرو جګوستنو نه شوه تیره.
دښایسته ځلانده قصر دروازی ته‌ودریدله.
دې بوډۍ بیا ،
نه زنځیر ددروازی وشرنګولونه یې وروټکولو،
ور برسیره په خپل سرشو.
بوډۍ لاړه‌شوه په‌قصر کی دننه
دابوډۍ خولاروی سره آشنا وه،
لاروی ښه پیژندله.
لاروی ښه‌پوهیدلو چی بوډۍ ولی راغلی.
اودا اوس په هغه قصر کی‌دننه
دبوډۍ اودواکدار په منځ کی څه خبری کیږی.
څه موده لاتیره نه وه،
چی راووتل دوی دواړه ،
دمانۍ له کنډوالونه،دلوی ښار له خرابونه،
بوډۍ مخکی قهرمان ترشاروان وو.

لاړلاړل کومې خواته نامعلومه...

* * *

مجنون پاتې حال ویجاړې هلته ناست و
دخپل ښار په کنډواله کې.
دعالم په‌تماشه و .
دزمان دفتر برسیره ورته پروت و،
له‌آغازه‌تر انجامه.
دعالم‌صفحه ئې‌مخې‌ته خپره وه،
له ذرې تر کهکشانه
هم‌ماضي اومستقبل غاړه غاړې‌وو،
دهغه حال په شیبه کې .
شپې اوورځې تیریدلې،
بیارا تلل میاشتې کلونه،
یو پر بل پسې پیهمه.
هم فصلونه، موسمونه، راروان بیرته روان وو.

* * *

ترڅو شپه یوه دشپووه،
لاروی په‌کنج کې ناست‌و.
دافق توږ لمنې‌ته‌ئې کتلې .
یو ناڅاپه ورښکاره شوې، هلته دورې،
رڼاگانې زیاتې، زیاتې، په‌تورتم کې ځلیدلې.
دې راپاڅیده له‌ځایه، په‌رڼاپسې روان شو.

* * *

توله شپه ئې مزل وکړ .
چې‌سباشو سپین سبا شو،

لاروی دیو سیند غاړی ته نژدی شو .

سیند اوار ډك بهیدلو .

دسیند غاړی وی آبادی .

چمنونه شنه پراته وو ، سره گلونه غوړیدلی .

ښکلی مینی رنګارنګه په کی هرطرف ولاړی .

باغ اوبڼ کی دمرغانو شورماشورو.

پیغلی نجونه ښکلی ښکلی .

ښه ځلمی ښایسته ځوانان وو ،

ځنی ځنی دخپل ښار په آبادی بوخت ،

ځنی نور بیا ،

دښایسته پیغلوسره ناست په رازاونیازوو ،

محبت وصفایی وه ، ښکلول وو زغلول وو ،

مشران سپین زیری ناست ووپه دیره کی ،

مرکی وې مشورې وې .

ماشومان دسیند په غاړه لوبیدل ټول ،

شورماشورو غلغلی وې .

اوبیا هغه ناشنا پیغله ،

زوړ کمیس څیری گریوانه ،

گرځیدله مسته مسته خرامانه ،

شین کمیس نری شفاف ئی و په تن کی نوی نوی .

دوحشی گلونو تاج ئی پاس په سرپروت.

دبهار زمې په شانې الوتله،
د ښتونو غرځنې ورته راتللی،
شنه لمن ئې بویوله، ښکلوله .

* * *

لاروی دنیمو شپوچې داحال ولید،
بې اختیاره په خندا شوه .
ځکه پوه شو،
چې له سره بیاشروع شو، یوځل بیابیا،
زوړ داستان دقهرمان ستر پهلوان ستر،
اود ښکلې رب‌النوعې الهی دعشق اومینی .
یوځل بیا له سره پیل شوه،
افسانه لویه اوزده دتور ښامارمار .

# سمون لیك

یادونه : دحضرت حکیم سنایی دسیمینار د وخت د رارسیدو او دکارونو د تراکم له امله دغه کتاب په ډیرلږ وخت کی چاپ شواوهم یې اصل سم نه ؤ لوستل شوئ نو بناپردې څه غلطی پکی پاتې دي، له لوستونکو څخه هیله لرو، چی تر لوستو د مخه دې تصحیح کړي ، ځکه چی دکتاب عبارات موزون دی ،که غلطی سمې نه شي محترمو لوستونکو ته گرانی پیښـوی .

| ناسم | سم | مخ | کرښه | ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| گذر | گذار | ۵ | ۴ | کلی نه | ولی نه | ۱۷ | ۱۹ |
| دانسان | داستان | ۵ | ۴ | له دي | به له دي | ۲۰ | ۶ |
| کوچنی‌اوادامه | کوچنی‌ادامه | ۵ | ۴ | سردرو | په سردرو | ۲۰ | ۱۸ |
| وگری کوچنی‌او | وگړی‌او | | | هم | اوهم | ۲۵ | ۱۲ |
| په بره خوا | په هره‌خوا | ۱۱ | ۲۲ | رسیدلی | رمیدلی | ۲۵ | ۱۹ |
| له ځایه | له ځانه | ۱۶ | ۲ | دښارمار، مار | دښا مار مار | ۲۶ | ۱۹ |

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| پریواته | لمرپریواته | ۲۷ | ۸ |
| واورئ | راشئ‌واورئ | ۲۸ | ۲ |
| کاڼی | کاڼه | ۲۸ | ۷ |
| سمندرو ینی‌سمندر | سمندرو ینی | ۲۸ | ۱۲ |
| خړ | خو | ۲۸ | ۲۳ |
| دوړی | دوری | ۳۸ | ۲۲ |
| هی غزیزی | هی غریزی | ۳۹ | ۳ |
| غرونه | غرونه غرونه | ۳۹ | ٦ |
| دزوندو | دژوندون | ۴۱ | ۱۵ |
| نویو | نویـي | ۵۸ | ۱۸ |
| دزحمت | دازحمت | ۵۲ | ۸ |
| خاموشه | شو خاموشه | ۵۳ | ۱۱ |
| تورآس | په تورآس | ۵۵ | ۲۱ |
| په خاموشه | چه‌هغه‌خاموشه | ۵۷ | ۱۵ |
| کتل | کتلی | ۵۸ | ۱۸ |
| بوخت | یووخت‌هم و | ٦۱ | ۸ |
| احساس‌یی | احساس | ٦۲ | ۱۳ |

په ٦۸ مخ کی‌دي‌دوهم کرښه وایستل‌شي .

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| ۰ کړي | کړي دی | ٦۹ | ۱۴ |
| لړزوی هم | می‌لړزوی هم | ٦۹ | ۱۷ |
| تصور | داتصور | ۷۰ | ۱٦ |
| لرلو | کوو | ۷۳ | ۱ |
| په زره لمبه | په زړه منډله | ۷۳ | ۱۷ |
| را پاریدل | راپاریدلی | ۷۴ | ۲۱ |
| تهدا بو نوز مکی | تهدا بو نه‌ځمکی | ۷۸ | ۱۳ |
| التفات د | التفات دي | ۷۸ | ۱٦ |
| شامدام | شامدام ته | ۷۸ | ۲۳ |
| استول | واستول | ۸۰ | ۱ |
| په عقل‌اوفکر | چی‌عقل‌فکر | ۸۰ | ۱۰ |
| تزلی | تولی | ۵۲ | ۵ |
| ځانته | خپل ځان | ۱۵ | ۴ |
| معین | مین | ۸٦ | ۲۳ |
| له ددي | له دي | ۸۷ | ۵ |
| نه‌کوم | نه‌کوم ښارشته نه | ۸۷ | ۱۲ |
| معین | مین | ۸۷ | ۲۳ |
| راوړي | اروي | ۸۹ | ۱۰ |

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| د دربار | د دریاب | ۸۹ | ۱۷ |
| ښایم | درښایم | ۹۱ | ۳ |
| دحکم | دحکمت | ۹۴ | ۷ |
| لټول | لټول ده | ۹۴ | ۲۲ |
| دخپلو | خپلو | ۹۴ | ۲۵ |
| موجوده | موجود | ۹۵ | ۶ |
| ننوځي | ځي ننوځي | ۹۵ | ۱۶ |
| تله | تلله | ۱۱۸ | ۴ |
| پټ | تیټ | ۱۱۸ | ۱۵ |
| یولحظه | یوه لحظه | ۱۱۸ | ۱۵ |
| نژدې | نژدې نژدې | ۱۲۱ | ۱۵ |
| کولچي | کووچي | ۱۲۲ | ۶ |
| ځغلي | ځغلي ځغي | ۱۲۹ | ۴ |
| رب در | رب دي | ۱۳۰ | ۱۶ |
| دسرمستو | دسرمستیو | ۱۳۰ | ۱۸ |
| به نورو | به چي نورو | ۱۳۱ | ۳ |
| همداماشومان لوی | چي همداماشومان لوی شول | ۱۳۳ | ۳ |

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| دوی | به دوی هم | ۱۳۳ | ۷ |
| دازمان | دازما | ۱۳۴ | ۱۰ |
| تل غوزغوزدی | تل غوز زدی | ۱۳۶ | ۱۴ |
| دابهار دی | دربهاردی | ۱۳۷ | ۱۴ |
| پریړی | پیړې پیړې وي | ۱۳۸ | ۲۴ |
| یسې پرده | بې پرده | ۱۴۰ | ۱۲ |
| خوز نزه | خوزمونزه | ۱۴۱ | ۲۴ |
| دمستی | دمستی نه | ۱۴۳ | ۷ |
| دژوند | دژوندون | ۱۴۳ | ۱۷ |
| زه هری | زه پرې | ۱۴۶ | ۱۵ |
| نوی لوی | نوي نوي | ۱۴۸ | ۱۰ |
| خوزه وایم | خوزه وینم | ۱۵۶ | ۴ |
| بوی هم | بوی دنم | ۱۵۱ | ۱۲ |
| هم هسی | هم هغسی | ۱۵۷ | ۱۹ |
| تیریدلی پرسیدلی | تریدلی رمیدلی | ۱۵۹ | ۲۴ |
| توررره شوه | بلاشوه | ۱۶۰ | ۸ |
| په خپله | چي پخپله | ۱۶۰ | ۱۴ |
| تلو پروت | تل پروت | ۱۶۰ | ۱۴ |

| ناسم | سم | مخ | کرښه |
|---|---|---|---|
| هیره | هیره کړي | ۱٦۲ | ۱۴ |
| یو وخته | یوچانه | ۱٦۳ | ۳ |
| زشتا ،رشتیا | رښتیا رښتیا | ۱٦۳ | ۲۴ |
| دتله ناسته | دلته | ۱٦۷ | ۱۹ |
| محضه | محضه خو | ۱٦۸ | ۱۴ |
| به په یسی | بیا یسی | ۱۷۰ | ۵ |
| شو ناروغه | شوه فارغه | ۱۷۰ | ۱۰ |
| چی‌راپیښ‌شو | چی‌به‌راپیښ‌شو ، | ۱۷۱ | ۵ |
| زایل | زایله | ۱۷۵ | ۲ |
| سترمنی | سرمستی | ۱۷۵ | ۱۰ |
| می کړه | یسی کړه | ۱۷۵ | ۲۵ |
| په کاردی په | په کاردی | ۱۷٦ | ۱۴ |
| چی ـ وروسته | چی‌به وروسته | ۱۸۷ | ۲۲ |
| له دی ځایه | په دی ځای | ۱۷۹ | ۷ |
| ههرمانی کی | قصرمانـی کی | ۱۷۹ | ۱۲ |
| دمعبد | دلوی معبد | ۱۸۳ | ۱۲ |



# فهرست

## ځلورم پړاو



۴ـ دویم څرخ

ځانځانی ښامار

یو ځل بیاراستون ښامار شو

## پنځم پړاو



## شپږم پړاو



ښاغلی سید بهاء الدین د ښاغلی سید شمس الدین «مجروح» زوی دی او د اپریل په ۱۲ د کال ۱۹۲۸ په ځمکې ننګرهار کښې زېږېدلی دی. ابتدایی او ثانوی تحصیلات یې د استقلال په لیسه کابل کښې په کال ۱۹۵۰ کښې پای ته ورسول په کال ۱۹۵۱ کښې د پوهنې وزارت له خوا فرانسې ته د فلسفې او روحیاتو د تحصیل د پاره واستول شو.

په کال ۱۹۵۲ کښې یې په لندن یونیورسټی کښې د انګریزي ژبې او ادب تحصیل وکړ. په ۱۹۵۳ ـ ۱۹۵۴ د فرانسې په مانتپیلیه یونیورسټی کښې د عمومی ادبیاتو او تاریخ سرتیفیکیټ حاصل کړ. په ۱۹۵۴ ـ ۱۹۵۵ کښې یې د عالی تحصیلاتو دوه سرتیفیکیټونه په لاس راوړل: (۱) عمومی علم النفس او علم الجمال. (۲) د اطفالو علم النفس.

په ۱۹۵۵، ۱۹۵۶ د عالی تحصیلاتو دوه لاندې سرتیفیکیټونه په لاس راوړل: (۱) د اخلاقو فلسفه او علم الاجتماع. (۲) د اجتماعی ژوند روحیات. په ۱۹۵۶ ـ ۱۹۵۷ د عالی تحصیلاتو سرتیفیکیټ په عمومی فلسفه او منطق کښې حاصل کړ.

سربېره په لیسانس د په ۱۹۵۷ ـ ۱۹۵۸ کښې د عالی تحصیلاتو ډیپلوم په فلسفه کښې حاصل کړ او خپل تېز یې په فرانسوی ژبه د الفرد ادلر د نظریاتو په باره کښې ولیکه چه د مانتپیلیه د پوهنتون له خوا په اعلی درجه قبول شو.

د دې په خوا کښې ښاغلی مجروح په المان کښې د المانی ژبې او ادب تحصیل وکړ او د هیګل فلسفه کښې یې خپل تخصص حاصل کړ.

اوس ښاغلی مجروح د کابل د ادبیاتو په پوهنځی کښې د فلسفې او روحیاتو پوهاند وی دی.